# اسلامي امارت



د هېواد امن او سوکالۍ ته ژمن دی!

# ځرک

شپاړسم کال، دویمه، پرلپسې ۱۱۵مه ګڼه،
جدی ۱۳۹۸ل، جمادی الأولی ۱۴۴۱هـ ق، جنوري ۲۰۲۰م

## د ۸ زرو بمونو قربانيان څوک دي؟!



## په ۲۰۱۹م کال کې په افغانانو څه تېر شول؟

طالبانو څنګه د داعش د "خراسان" څانګې

## تبلیغاتي دستګاه خاموشه کړه؟

❖ هم دې مړ او هم دې پړ یې!

❖ علماء هم بې طرفه کېدای شي؟

## ټرمپ او د واشنګټن پوسټ نوی کتاب...!!

## تر امریکايي غلبېل وتلي حشرات

محترم (انعام الله سمنګاني):

## نتیجه دیپلماسی کامیاب امارت اسلامی است که جامعه جهانی دانست طالبان کی ها اند و چرا می جنگند؟

# څرک

علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

شپاړسم کال، دویمه، پرلپسې ۱۱۵مه ګڼه،
جدی۱۳۹۸ل، جمادی الأولی ۱۴۴۱هـ ق، جنوري۲۰۲۰م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلدارې |
| امریکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلدارې |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

**پتې :**

srak_111@yahoo.com


## لړلیک

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله



# اسلامي امارت

## د هېواد امن او سوکالۍ ته ژمن دی

داسې برېښي چې د اسلامي امارت او امریکایانو تر منځ د خبرو او مذاکراتو لړۍ نوره پای ته رسېدلې او د سولې د هغه تړون او معاهدې د لاسلیک په څرنګوالي غور کېږي چې له مخې به یې ټول امریکایي عسکر له افغانستان څخه وځي، په لومړي قدم کې به پنځه زره اسیران ازادېږي او هم به بین الافغاني مذاکراتو ته زمینه برابرېږي.

که دغه پړاوونه په همدې بڼه او شکل ترسره او په مخ ولاړ شي، شک نشته چې کړان هېواد به د امن، سوکالۍ او پرمختګ په لور کامونه واخلي او دا امید شته چې اللّٰه پاک به تر اوږدو ناخوالو او کړاوونو زغملو وروسته د افغانانو په خوښه د یوه سوچه، رښتیني او خپلواک اسلامي نظام د حاکمیت هیلې اوارمانونه پوره کړي.

په دې حساس وخت کې دا پوښتنه راپیدا کیږي چې آیا اسلامي امارت به وکولای شي چې له امریکایانو سره هوکړې او پرېکړې عملي کړي، او افغانان ډاډمن کړي چې راتلونکی نظام به د افغانانو د دیني او ملي اقدارو ممثل وي؟

هو، اسلامي امارت د یوه منل شوي پوځي، سیاسي او ولسي حقیقت په حیث دا ظرفیت او وړتیا لري چې له امریکایانو سره د سولې او امن تـوافقنامه په بري سره سرته ورسوي او د نظام جوړولو موضوع د افغانانو په خوښه حل کړي.

د دې خبرې دلایل دا دي چې اسلامي امارت نږدې شپږکاله په افغانستان کې باثباته اسلامي نظام درلود؛ د نظام چلولو پخه تجربه یې حاصله کړې ده. بله مهمه خبره دا ده چې په یوازې ځان یې دامریکا او ۴۱ هېوادونو اشغال او زور ازمایۍ ته کلکه ځواب ووایه. اتلس کاله یې د هغوئ هرډول جنګي او سیاسي لومې اوداموټه درې وړې کړل او پرهغو سربېره یې د خپلې واکمنۍ چتر د هېواد پر نږدې ۷۰ سلنه برخه خپور وساته.

اسلامي امارت په تر خپل واک لاندې ساحو کې د حکومتولۍ یو منظم سیستم رامنځته کړی، چې د امریکا لخوا د تپل شوي کابل رژیم په پرتله ولس ته له فساده پاک خدمات وړاندې کوي. ولس ته د اسلامي امارت د برحاله نظام قضایي قوه د کابل رژیم تر هغې څو چنده معتبره ښکاري، او خپل مشکلات د شریعت په بنسټ ولاړو محکمو ته راجع کوي.

د دې ترڅنګ چې اسلامي امارت له تېرو اتلسو کلونو راهیسې له کومې وقفې پرته د هېواد د خپلواکۍ د بیاًاعادې لپاره وسله واله مبارزه روانه ساتلې، همممهاله یې سیاسي ډګر هم فعال ساتلی، د سیمې او نړۍ له هېوادونو سره یې ډیپلوماټیکې اړیکې جوړې کړې او په ځینو بنسټیزو موضوعاتو کې یې هغوی له ځان سره همغږي کړي دي.

اسلامي امارت د خپل قیام په لومړنیو او د امریکایي اشغال پر ضد په روان اتلس –کلن مقاومت کې دا په اثبات رسولې چې له هېواده د فساد، مفسدینو او بدمرغیو له منځه وړلو، د افغانانو د دیني او ملي اقدارو د ممثل نظام راوستلو، او د هېواد د خپلواکۍ او ارضي تمامیته د دفاع ترڅنګ د خپل ولس ښېرازۍ او سوکالۍ ته ژمن ځواک دی.

نوځکه په ډاډ ویلی شو چې اسلامي امارت د خپل ولس له منځه راټوکېدلی ځواک دی، چې د خدای عزوجل په مرسته به له خپلو خلکو سره یوځای د خپل هېواد د دفاع او سوکالۍ لپاره تل چمتو ولاړ وي او خپل برخلیک به په خپله ټاکي. ان شاءاللّٰه تعالی

# د ۸ زرو بمونو

# قربانیان څوک دي؟!

شاهد (غزنیوال)

د بشري حقونو د څار سازمان (هیومن رایټس واچ) په خپل وروستي رپوټ کې ویلي چې امریکایي ځواکونو د ۲۰۱۹ کال له جنورۍ د همدې کال تر سپټمبر پورې په افغانستان کې ۸ زره بمونه غورځولي دي چې له کبله یې پر ۲۵۰ ماشومانو سربیره ۸۰۰ ولسي کسان وژل شوي دي.

د بشري حقونو د څار سازمان د اسیا برخې مشرې پټریشیا ګاسمن په دې رپوټ کې ویلي چې که څه هم د افغان ولسمشریزو ټاکنو په مهال ډېر بریدونه طالبانو وکړل، خو د کال له پیله بیا ډیرې حملې او شپني عملیات د افغان حکومت ملاتړو ځواکونو (امریکایانو) کړي چې ولسي خلګو په تیره ماشومانو ته یې زیات تاوانونه اړولي دي.

دا لومړی ځل نه دی چې هیومن رایټس واچ په افغانستان کې د امریکایي او نورو بهرنیو ځواکونو لخوا د ولسي- وګړو د مرګ ژوبلې او تلفاتو په اړه خبر ورکوي؛ بلکې تر دې وړاندې رپوټ کې یې هم په افغانستان کې میشت امریکایي او ناټو ځواکونه د بشر ضد جنایتونو په ترسره کولو ملزم کړي و.

هیومن رایټس واچ د بشري حقونو د یوه معتبر مدافع سازمان په توګه دا حق لري چې د بشري حقونو د ناقضینو په اړه غبر اوچت کړي او د بیوزله انسانانو خلاف د جنایتکارانو د جنایتونو مخنیوی وکړي.

دا ناقضین که هرڅوک وي، که د ځواکمنو هیوادونو په سطحه کوم هیواد او یاهم د جنګي ډلو د مشرانو او افرادو په حیث جنګي ډلې او یا د هغو فردې غړي وي.

له تیرو ۱۸ کلونو راهیسې- چې امریکایانو او د هغوی ایتلافي اشرارو په افغانستان کې د امنیت او سولې د ټینګښت په پلمه پر افغانستان یرغل کړی دی، د بشري حقونو د څار سازمان



په شمول نورو د بشري حقونو مدافعو ټولنو او له جنګي جرمونو سره د مبارزې نړیوالې محکمې په افغانستان کې د ولسي خلګو پر خلاف د هغوی وحشیانه مظالم د بشر ضد جرائم ګڼلي، پر هغو یې نیوکه کړې او لـه حقوقي مراجعو څخه یې د هغو د مواخذې او مجازات غوښتنه کړې.

د بېلګې پـه توګـه د برتانیـا مشـهوره ورځپاڼـه ګـارډین پـه افغانستان کې د بهرنیو ځواکونو لخوا د جنګـي جرائمـو د تـرسره کولو په اړه وايي چې نړيوالـه جنـايي محکمـه بايـد امريکـايي پوځيان په افغانستان کـې د جنګـي او بشـري جرمونـو مسـؤولين وبولي او دا تري وپوښتي چې ولې د امنيـت د ټينګښـت پـه پلمـه بيوزله افغانان وژل کيږي او پر بشري حقونو یې تيری کيږي؟!

د ګارډین په خبره باید امریکایي پوځیان، د سي ای اې غـړي او نور جنګي قراردادیان په افغانستان کې د کړیو جرمونو له امله د جنګي مجرمینو په حیث وپېژندل شي.

پر دې سربیره د نړیـوالې جنـایي محکمـې یـوې څـارنوالې فاتوبین سودا هم دا غوښتنه کړې چې د افغانستان د رواني جګړې پر مهال شوي جنګـي جـرائم بایـد وڅېـړل شي او لـه امریکـایي پوځیانو، کابل رژیم امنیتي ځواکونو او د جګړې له ټولو ښـکیلو اړخونو څخه د بشري سرغړونو په اړه پوښتنې وشي.

خو امریکایان چې ځـان د بشـري حقونـو اسـاسي مـدافعین بولي د نړیوالې جنایي محکمې د دغه وړاندیز پر مخالفت سربیره د یادې محکمـې څـارنوالانو تـه لـه سره اجازه نـه ورکـوي چـې افغانستان ته راشي او دلته له نیـږدې هغـه جـرائم و وینـي چـې د امریکا او ناټو ځواکونو لخوا د بیوزله ولسي افغانـانو خـلاف تـر سره شوي.

اوس چې د بشري حقونـو د څارسـازمان خپـل نـوی رپـوټ خپور کړی او په هغه کې يې پر افغانـانو د امريکـا لخـوا د ۸۰۰۰ بمونو غورځولو تذکر کړی دی، له شکه پرتـه چـې د دغـو ټولـو بمونو ټول قربانیان ولسي وګړي په تیره ښځي او ماشومان دي چې امریکایان یې د وژلو، ربړولو او ژوبلولو هیڅ پروا نه کوي...



## أمير المؤمنين في الحديث:

# سفـيان الثـوري رحمه الله

امام سفیان الثوري (مړ: ۱۶۱هـ) ډېر ټوکمار و، دومره بـه یې خندل چې څملاست به، او پښې به یې وغځولې.

د قبیصه په نوم یو راوي وايي: زه به قصدا ترې شاته روان وم، تر څو مې په خپلو ټوکو حیران نه کړي.

د حدیثو طلاب العلمو ته به یـې ویـل: را وړانـدې شـی د کمزورو ټولیه.

یوه ورځ یې یو کس ته وویل: را نـږدې شـه، کـه چېـرې مالداره وی، نو نه مې را نږدې کولی.

یو شاګرد یې وایـي: امـیران او مالـداران بـه د سـفیان پـه مجلس کې تر ټولو ټیټ ناست و، او دی په خپـل پوښـاک کـې متواضع و، زړې جامې به یې په تن وې.

یو وخت چېرته په سفر تللی و، نو یو کس چې د اوښـانو خاوند و، هغه ته یې کرایه ورکړه، چې مکې مکرمې تـه ویـې ورسوي، د قافلې والا ترې وغوښتل چـې دوی تـه ډوډۍ جـوړه کړي، سفیان ډوډۍ جوړه کړه خو ښه رانغله، د اوښانو خاونـد راغی، او دی یې وواهه، کله چې مکې ته راورسېدل، خلک له امام سفیان الثوري را ټول شـول، نـو د اوښـانو خاونـد پوښـتنه وکړه، چې دا څوک دی؟ خلکو ورته وویل: دا سـفیان الثـوري دی، کله چې ترې خلک خواره شو، د اوښانو خاوند ور نـږدې شو، او د معذرت په بڼه یې ورته وویل: ابوعبدالله، مـونږ ونـه پېژندې، نو امام سفیان ورته وویل: څوک چې د خلکـو ډوډۍ خرابوي، له دې لا زیات ډبول کیږي.:) (سير أعلام النبلاء).



# د روانو مذاکراتو یو ورک لوری!

ع : درانی

د مجلې تګلارې او پالیسي ته پـه پوره احترام سره چې پـه خپـل ځـای ده، ولې لیکوال هم "چې هیڅکله باید دڅا تر اثـر لانـدې رانـه شي" خپلـه شـننه او لرلید با ید په هغه ډول چـې د ده زړه تـه يې خطور کړی خامخا خلکو ته ښکاره کړي او همدا به يـې رسـالت هـم وي، هو! دلته دا یادونه هـم ضروري ده چـې له فکري مشرب نه انحراف هیڅ لیکوال ته په کار نه دی، مونږ چې له تېرو نږدې دوه لسیزو راهیسې داسلامي اصـولو پـه رڼـاکې د نظـامي، کلتـوري او فکـري اشغال په وړاندې مبارزه کووº مسیر مـو ډېر روڼ او څرګنـد دی اوپـه پـوره ویـاړ سره داســلامي امــارت لــه ویــاړمن او خپلواک نظام سره تـړاو پـه هـر لحـاظ ځانته سعادت بولو .

خـبره مـې د سـولې او مـذاکراتو کوله! له نږدې یـوه کـال راهیسـې تـول هیوادوال پـه قطـر هیـوادکې لـه امریکـا سره دسولې روانو مـذاکراتو نتیجې تـه خلک سـترګې پـه لار دي او ډېـره هیلـه يې داده چـې دا خـبرې اتـرې ژر تـرژره یوې نتیجې ته ورسیږي، ترڅو مو هیواد آزاد او هیوادوال په سوله او امن کې ژوند وکړي .

سوله، سولې ته دافغانانو تنده او اړتیا لکه څومره چـې دسـولې هیلـې پیـاوړې کـوي، دسولې له دښمن سره جګړه يې همدومره په هیلو خاورې هم اړولې شي، ځکـه مقابـل لـوری په دغه جګړه کې له ټولو پولو پښه واړوله او هیڅ نړیوال قـرارداد، بشـري، حقـوقي، انسـاني او مذهبي اصل يې په پام کې ونه نیو، تردې چې خپلې کړې ژمنې يې هم په ډېره سـپین سـترګۍ او جسارت سره ماتې کړې .

داهغه بې باوري ده چې بل ته په ډېرو ادنی خبرو ور اوړېدلی شي، خو دوی له دې ټولو سره سره بیاهم دنړیوال اعتبار په کوره ناست دي او د ډېرو نورو داسې اعمالو په تـرسره کولـو به بیاهم کومه پروا ونه کړي .

دروانو مذاکراتو له بهیر او دهیواد پـه دننـه کـې لـه روان وضـعیت نـه مـې یـو برداشـت اخیستی چې دځینو نښو نښانو په استناد راته له واقعیته لرې نه ښکاري او دروانو مذاکراتو یـو ورک لوری يې بولم .

داسې ښکاري چې امریکایان په دغو مذاکراتو کې ښه نیت نه لري، همدا لامل دی چې داوربند، تاوتریخوالي کمی او ځینو بریدونو بهانې په داسې حال کې کوي، چې په خپلـه یـې تربل هروخت بمباریو، شپنیو عملیاتو او وژنو ته ډېر زور ورکړی، ورسره يې نه یوائې داچې کړو ژمنو ته وفا نه ده ښودلې، بلکې برسېره پرهغې يې په عین موقع ناوړه تبلیغـات او تورونـه هم پورې کړي، نو راځۍ! داومنو چې دمذاکراتو دبهیـر اوږدول د دوی یـوجنګي پـلان دی! چې سولې ته د تطمیع له دغې لارې دوه نور پلانونه پرمخ وړي : یو دمجاهدینو اومسؤلینو پـه صف کې یو ډول بې اعتمادي، تردد او کسالت رامنځته کول او بل دعامو ولسيـ افغانـانو لـه یوې مخې وژنه چې پرطالبانو د فشار په ډول ترې کار اخلي، په تېره بیا په داسې حال کې چې طالبانو له دوی سره په مذاکراتوکې بار بار په دې اړه مشـاجرې هـم کـړې اوس نـو دوی فکـر کوي چې همدایې خوږ ګوته ده او باید چې پرې يې نږدو.

ګویا چې په دې ډول به خپل وحشت ته دوام ورکوي او مذاکرات به یوه دایمي اوربند ته درسېدو په ځای په مؤقت اوربند او نورو بهانو اوږدوی، ترڅو وکـولای شي د دغـه فشـار لـه

لارې طالبـان لـه خپـل دريځـه واړوي اوداسې تنزل ته يې اړکړي چـې خامخـا به دماتې په معنی وي .

د دغه غدر په وړاندې نـور وخـت ضايع کول نه دي پـه کـار او يـوه قـاطع تصميم ته ضرورت دی چـې پـه لانـدې ډول مې متصور کړی :

لــه نظــامي کميســـيون او ټولــو نظـــامي مســـؤلينو سره پـــه پرېکنـــده اواغېزناکـه بريـدونو سـلا مشـورې پيـل شي چې ترډېره يـې تمرکـز پـر بهرنيـانو وي او مخکې له دې چې پـسرلی شي، په دغو پلانونو دقيق کار وشي ، په دغـه موده کې طالبان هـم لـه امريکايـانوسره مــذاکرات همدغســې وغځــوي چــې دپسرلي په راتلو اوياهم دمـوثرو نظـامي عمليـاتو دتيـاري لـه بشـپړېدو سره سـم دعاليقدر اميرالمؤمنين شيخ صيب هبـة اللـه حفظـه اللـه لـه لـوري د مـذاکراتو دقطع اعلاميه اوفرمان صـادر شي او پـه اعلاميه کې هم چې دغه يو څو ټکي له پامه نه وي غورځول شوي :

يو خو داچـې د مـذاکراتي بهيـر د قطع لاملونه پکې په واضح ډول راغـلي وي، دويـم ټولـو حکـومتي عسـکروته دهيـواد دخپلـواکۍ پـه غـرض نفـوذي بريدونو ته دعوت ورکـړل شـوی وي او دريم په خپله د لاسپوڅي حکومـت پـه اډانه کې ځينو گيله منو،گوښه شويو او هغو څېرو ته پکې يوډول پيغام وي چې په ځان کې د اشغال د احسـاس د بـاور دعوا کوي .

دامريکا تېر تاريخ ته په کتو چې له هرچا سره يې مـذاکرات کـړي، د دې پـه ځـای چـې يوې منتجې نتيجې ته ورسيږي، هسې يې بې پايلې اوږده کړي او مقابل لـوری يـې مصروف ساتلی .

له دې سره سره چې مونږ سولې او په هيواد کې هيوادوالو ته دسـوکاله ژونـد برابرولوتـه تر هرڅه ډېره اړتيا لرو او بايد چې په دې لاره کې دسولې هيڅ چانس له لاسه ورنکـړو، خـودا هم دروانو مذاکراتو يو اړخ کېدلای شي چې که رښتيا هم دښمن له مونږ سره بيا همداسې پـه چل او فريب کـې وي ښـه بـه وي چـې وار پـرې ړومبـی شي اودجنـگ لـه شـدت نـه لاسـته راتلونکې نتيجه و نه ځنډوو، ځکه له سولې او مذاکراتو نه هدف او مقصد دهيواد اسـتقلال او دهيوادوالو دژوند تأمين دی، خو چـې هـدف نـه ترلاسـه کيـږي او ورځ تربلـې مـو هيـوادوال داشغالگرو په سره اور کې سوځي، بيانو چې له هرې خوا ذهن را فارغ اويواځې داشـغالگرو ځپلو ته کار ووايو .حسبنا الله ونعم الوکيل نعم المولی ونعم النصير .

# موږ ټول وايو د امريکا له راتګ سره

## پیسې او نعمتونه را سر شول

عبيد

خو دا له يـاده مـه وباسـئ چې دا پيسې زمـوږ ملي اقتصـاد (بنـدونو، نهرونـو، فابريکو، سړکونو، کانونو...) ته نـدي پمـپ شـوې چې عـام او خـاص تـرې مسـتفيد شي.

دلته پيسې خاصو چينلونو ته تزريق شوي او هغه خلک پرې وپړسېدل چې پـه يوه نه يوه شکل له امريکا سره په افغان کشۍ کې شريک وو.

يوه ورځ له يوه وردګ ځوان سره مخ شوم. قسم يې وکړ چې پـه کلي کې ډېر کليوال پېژنم چې ټول کور کې حتا شل افغانۍ نلري. وايي هيڅ داسې کار نشـته چې ته پرې پيسې وګټې.

دلته دا اتلس کاله چاپې دي، حملې دي او بمبار. له اسمانه که څه راځـي او کـه له زمکې قوه راځي؛ له موږ يې يواځې مړي او جنازې اخيستي.

دا کيسه تقريباً د ټول افغانستان کيسه ده. ورته ارقام په خپله نړيـوالې ټولنې هـم تاييد کړل چې افغانستان کې د بېوزلۍ کچه له شپېتو اوښتې. مانا هره سـلو نفـرو کـې له شپېتو زيات افغانان يې درې وخته ډوډۍ نلري.

زموږ د وطن په اقتصادي شاه رګونو يو څو خونخوارو داړې ښخې کړې.

دا داړې پردۍ دي او له دې حالت نه وتل غواړي.

# هو! افغان ولس د روانې بدمرغه جګړې پای ته رسول غواړي!

■ بشیر ارمان

Courtesy - NATO Special Operations Component Command-Afghanistan (File Photo)

قطرکې داسلامي امارت دسیاسي دفتر ویاند ښاغلي سهیل شاهین دروان ۲۰۲۰دجنوري په ۱٦مه پخپله ټویټرپاڼه لیکلي: داسلامي امارت دسیاسي مرستیال او د قطر دسیاسي فتر درئیس «ملا برادر اخند» او د امریکایانو د مذاکراتي ټیم د مشر «زلمي خلیلزاد» ترمنځ دسولې توافقنامې د لاسلیک مراسمو په هکله خبرې شوي دي

بې له شکه! سوله افغان ولس ته یو خوږ زیری دی،هرکله چې دسولې دراتلو غږ وشي اویا په اړه یې دخبرواوبحثونو زوږ شي نو د جګړه ځپلوافغانانو په کورونوکې مشران، ماشومان اومیرمنې ټول همدا یوه دعاء زمزمه کوي « متعاله ربه!ته زموږ په وطن کې رښتینې سوله راولې! د جنګ له بدمرغیو وژغورې!»

داسلامي امارت او امریکایانو ترمنځ له یوکال نه زیاته موده وشوه چې دسولې په اړه مخامخ خبرې جریان لري، هرپه سوله او وطن مین افغان په زیاته ورخطائې سره ددغو اوږدو خبرو وروستۍ پایلې ته انتظارباسي او هر سړی له ځان سره دا ارزو لري چې یوځل پخپل ژوند کې دا وران ویجاړ اوپه جنګ کې ښکېل «افغانستان » ښه ارام، ازاد او خوشال ووینې...

نو دسولې توافق نامې لاسلیکولو په هکله داسلامي امارت دسیاسي مرستیال اودامریکائي مذاکراتي ټیم دمشر- لیدل یومثبت پرمختګ دی، افغان ولس دسولې ارمانجن دی سوله غواړي او دسولې له بهیرنه ملاتړ او ننګه کوي

ویل کېږي چې دامریکا او اسلامي امارت ترمنځ د توافق نامې لاسلیکولو مراسموپه اړه اسلامي امارت له وړاندې څخه دا نظر یا هوډلري چې دنړۍ اوسیمې دمهمو هیوادونو دبهرنیوچارو وزیرانو، ملګرو ملتونو دنړیوالې ټولنې د استازو او داسلامي کانفرانس استازو په نظارت اوحضورکې له امریکا سره دسولې توافق نامه لاسلیک کړي او داکارپه دې وجه ضروردی چې نړۍ باید وفهموي چې امریکا دنن څخه ۱۹ کاله وړاندې په افغانستان دکوم ناروا یرغل اشتباه کړې وه، په ترڅ کې یې هیڅ هم ترلاسه نکړل او په اینده کې نورو زبرځواکونوهیوادونوته هم احتیاط پکاردی چې هغوی دې چیرې هم دامریکایانو پشان اشتباه نه تکراروي

راځو دیته چې سوله راتلل دافغان ولس لوی ارمان دی، له جنګونو افغان ملت ستړی شوی ، اوپه هیوادکې دهمدې بد مرغه جګړې دوام د خلکو دخوارۍ،فقر، لوږې، اوارامۍ لامل دی، زموږ دملت ځوان، مشر،سپین ږیري، نارینه ، میرمنې اوماشومان ټول دې جګړې ځورولي دي ، امریکایان هره ورځ په کلیو، کورونو او خلکو ړانده بمباردونه کوي، دشپې لخوا دخلکوپه

کورونو بې رحمانه چاپې غورځوي او دمظلومو افغانانو وينې داوبوپه څېر ارزانه بهوي

اوس تازه دبشري حقونو نړيواله اداري پخپل راپورکې ويلي چې امريکائي ځواکونو دتير ۲۰۱۹زکال په لومړيونهوومياشتوکې له ۸زره نه زيات بريدونه ترسره کړي دي، اوښکاره ده چې تيرکال په افغانستان کې ملکي خلکوته دسراو مال له پلوه تربل هروخت زيات زيانونه اوښتي دي، په زرهاوو خلکوته مرګ ژوبله اوښتي او په زرګونو نورتېپيان اويادخپلو کورونوڅخه شړل شوي دي

دبشري حقونو اداري په تازه خپاره شوي راپورکې راغلي چې ګډو ځواکونو د عملياتوپر مهال دطالبانو په پرتله ملکي خلکوته ډيره مرګ ژوبله اړولې ده او پـه عمليـاتو کـې دوی عـام افغانـان زيات متضرر کړي دي

دکابـل اجيـر رژيـم دفـاع وزارت دخپلـو بـادرانو(حقوق بشرسازمان) راپور په ځـواب کـې ويـلي چـې دوی عـامو خلکوتـه زياته مرګ ژوبله نه بلکې طالبانو اړولي ده، حـال داچـې دحقـوق بشرنړيوال سـازمان دامريکـا او دلاسـپوڅو ملګـری سـازمان دی، هغه د طالبانو سره هغـومره عقـده او دښـمنې لـري څـومره چـې امريکا اونور يـې ورسره لـري خـو داچـې ددښـمنۍ سربيـره يـې اعتراف کړی دی چې دطالبانو په بريدونوکې نه؛ بلکې دامريکا او کابل رژيم لخوا په بريدونوکې ملکـي وګـړوتـه زياتـه مـرګ ژوبلـه اوښتې اوپه لوی شميرخلک يې ځورولي دي، دا د« والفضل علـی ماشهد به الاعداء» په مصداق دطالب پر سپيڅلي او روڼ کـردار دلالت کوي.

بل پلو ته پخپله داجيررژيم چارواکو هم څوځله اعتراف کړی دی چې عام خلک دطالبانوسره مرستې کوي، څو چې دهغوی لخوا داکار روان وي نو د دوی لخوابه هـم دملکيـانو مـرګ ژوبلـه دوام ولـري ، دادحقـوق بشرسـازمان راپورتائيـدوي چـې داجيـر رژيـم ځواکونه دعامو خلکوپه وژلو او ځورولو کې زيات لاس لري.

يعنې مزدور،رژيم لخوا دعـامو خلکـو وژنـه پـه جګـړه کـې دخپلې ماتې غچ اخستل دي، او دمجاهدينوپه وړاندې جنګ کې دخپل «غرپه فرپتولو» لپاره په رڼـا ورځ ملکـي اهـداف پـه نښـه کوي ، په ډکوکورونو اوکليو بمونـه غورځـوي، پـه يـو، يـو کـورکې لسګونه بې ګناه وګړو ته مرګ ژوبله اړوي

لنډه داچې پـه افغـان ولـس لـه بيـرون څخـه دتپـل شـوې جګړې زيانونه او وحشتونه زړه بوږنوونکي دي،بدمرغه جګړه پای ته رسول پکاردي، او ددي لپـاره حتمـي او ضروري ده چـې دلتـه ميشت خارجي تـول ځواکونـه دي ووځي،ولـې څـو چـې دامريکـا اونـاټو عسـکر دلتـه قـابض پاتـه وي، ترهغـه پـورې سـوله نشيـ راتلی،او نه دهغوی په شـتون کـې افغانـان دسولې پـه راتلوبـاور کولی شي، نو که واقعاً امريکا دسولې راوستو اراده لري بايد پرته لـه کـوم ځنـډ او شرط نـه خپـل ځواکونـه وبـاسي، دافغانسـتان استقلال او ازادي دي اومني

بل لورته دامريکا«نيشنل انټرسټ» پـه نـوم يـوې خپرونـې هم ويلي: چې دامريکا ولسمشر ډونلډټرمپ دافغانسـتان جګـړې دپای ته رسولو قوي هوډلري، اوغواړي چې خپل پوځيـان وبـاسي، يـاده سرچينـه دامريکـا دولسمشرـ (ټرمـپ) دهـوډ پـه اړه دا څرګندونې په داسې مهال کې کوي چې دتيريوکال په مـوده کـې قطرکې داسلامي امـارت او امريکـا تـرمنځ دمخـامخ خبرو لـس پړاونه طی شوي دي اوپه ترڅ کې يې دواړه لوري ديو هوکړه ليک پر مسوده توافق ته رسيدلي، يوازې خبره دلاسليکولوته پاتـه ده، چې کله يې دلاسليکولو نيټه ټاکي؟

البته دامريکايانو لخوا دممکنه هوکړه ليک لاسليکولو لپـاره داسلامي امارت نه داوربنديا دجګړې دتخفيف غوښتنه شوې ده، چې داسلامي امارت دوياند ښاغلي ذبيح الله مجاهـد پـه وينـا: د اسلامي امـارت رهـبري دجګـړې دتخفيـف پـر لارو چاروبانـدې غورکوي او په اړه يې خپلمنځي مشـاورت جريـان لـري دهغـه پـه وينا تراوسه دجګړې دتخفيف په اړه کومه پريکـړه نهائي شـوې نده چې هرکله نهائې شي نو هغه مهال به اعلان شي

بل لورته عام افغان ولس چې دتپل شوي جګړې قرباني دی په زياته ورخطائي سره سولې ته انتظارلري اوپر ټولو ذيدخل لورو غږ کوي چې د افغانستان دننه دواقعيتونو په کتو ته دي دسولې په برخه کې ګرندي ګامونه پورته کړي او هغـه موانـع چـې سـوله ګواښي يا په وړاندې يې خنډ ګرځي هرورباید له منځه يـوسي پـه پای کې دعا کوو چې الله تعالی دي سوله راولي اوټـول افغانـان دي دسولې په ټغر دورونوپشان را ټول کړي .

# اسلامي امارت

## هیواد کې د امن یوازینۍ هیله

لیکوال: م. جمیل باور

ګران هیواد چې دا مهال د بهرني اشغال سره د سپېڅلې مبارزې وروستي پړاوونه لنډوي، د اشغال له پای ته رسېدو وروسته یوې داسې ځواکمنې مرکزي واکمنۍ ته اړتیا لري، چې د افغانستان ځمکنۍ بشپړتیا، امن او عدالت، ملي ګټې او ارزښتونه تأمین کړای شي او دغه راز یو داسې ټولشموله ځواکمن مرکزي نظام رامنځته کړي، چې د افغانستان ټول وګړي پکې خپل ځان برخمن وګڼي او د مخالفت پرځای له نظام سره په ګډه د هیواد د پرمختګ او سوکالۍ لپاره لاس په کار شي.

اسلامي امارت د همداسې مثالي واکمنۍ د رامنځ ته کېدو وړتیا لري، په دې برخه کې یې امتحان هم ورکړی او په ټوله معنا بریالی راوتی. د بېلګې په ډول د شوروي اتحاد د یرغل پروړاندې د افغانانو له میړنۍ مبارزې وروسته د دې پرځای چې هیوادوالو ته امن او سوکالي راوړل شوې وای، له بده مرغه افغانستان د یوې کورنۍ جګړې په ډګر بدل شو، هرځای د سیمیزو قومندانانو پاټکونه وو، چې په زور او ظلم به یې د خلکو مالونه او عزتونه لوټل. د دې ستر بحران پر وړاندې ستر غازي امیرالمومنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله د یو ځومخلصو ملګرو په مرسته له کندهار څخه قیام وکړ، لومړی یې د کندهار پاټکونه او ځنځیرونه له منځه یوړل او بیا یې د افغانستان په نورو سیمو کې هم د شر وفساد ټغر ټول کړ، او افغانستان یې له یو مثالي امن څخه برخمن کړ.

د ۱۹۹۲م کال څخه وروسته، چې پخواني مجاهدین کابل ته په شینډلي حالت کې ننوتل، په هیواد کې ملک الطوائفي او سیمیزې واکمنۍ نوړې هم قوي شوې او هیواد د تجزیه کېدو له جدي ګواښ سره مخ شو. اسلامي امارت په ډېر لږ وخت کې وتوانېده چې د هیواد په بېلابېلو سیمو کې سیمیزې واکمنۍ ونړوي او د ټول هیواد په کچه یوه ځواکمنه مرکزي واکمني رامنځته کړي.

اسلامي امارت د خپلې واکمنۍ پرمهال له ټولو اقتصادي چلنجونو سره سره د هیواد ځمکنۍ بشپړتیا په ټوله معنا خوندي کړې وه، هیڅوک به ثابته نه کړي، چې د اسلامي امارت د واکمنۍ پرمهال دې کوم ګاونډي هیواد د افغانستان له سرحدي حدودو تجاوز کړی وي، چې له امله یې د افغانستان ارضي تمامیت نقض شي، بلکې هغه مهال اسلامي امارت خپلو ټولو ګاونډیانو ته ډاډ ورکړی و، چې له افغانستان څخه دوی ته د هیڅ ډول خطر ویره نشته.



## د افغانانو کاکا مراد (ناکامورا)

# جاپانی ډاکټر

لیکنه: ښاد کوچی

تیستو ناکامورا چې افغانانو ورته د کاکا مراد لقب ورکړ څو ورځې وړاندې د نامعلومه وسلوالو له خوا په ننګرهار کې د درې ساتونکو سره وویشت لومړی زخمي وو او بیا یې له سختو ټپونو له وجې په روغتون کې ساه ورکړله

دا لا نه ده معلومه چې دا چا او ولی وواژه خو ناکامورا په یو داسې ځای کې ویشتل شو چې افغان دولت یې پوره د امنیت داډ ورکوي

تر اوسه دا هم نه ده څرګنده شوې چې کاکا مراد (ناکامورا) ولی افغانستان ته راغلو او ولی یې د افغانانو لپاره خپل ژوند له ستونزو سره مخ کړ خو ډېرې افغانان چې هغه ته د شهید لقب ورکوي دا به د شهید د نوم سره یو ستر خیانت وي زکه چې شهید یواځې هغه چاته ویل کیږي چې مسلمان وي او د اسلام د خدمت لپاره ووژل شي او په زړه کې یې د اسلام د سر بلندی نه بغیر بل هېڅ کوم شخصي ګټه نه وي کاکامراد که هر څومره خدمت په افغانستان کې وکړ زه نه پوهیږم چې دا یې ښه وکړل او که بد خو که مونږ پام وکړو نو زمونږ لپاره یې په ظاهراً ښه کړي دي خو هغه چې کم کارونه کړي هغه یې د شهید مقام ته نه شي رسولی او نه د شهید لقب د هغه خدمت په بدل کې ورکول کیږي چې ده ناکامورا کړی دی

زکه چې شهید باید مسلمان وي او د اسلام لپاره ووژل شي، هغه ته شهید ویلی شو نه هغه چاته چې عقیدوي کافر وي او سرف یو څه موده یې د مسلمانانو لپاره خدمت کړی



په۲۰۰۱م کې د امریکا په مشرۍ نړدې ۵۰ هیوادونو په افغانستان ناروا او د ټولو نړیوالو قوانینو او نورمونو خلاف یرغل وکړ. اوس دا دی نږدې دوه لسیزې کیږي، چې اسلامي امارت په ډېره مېړانه د خپل هیواد د ازادۍ او سوکالۍ په هیله له یرغلګرو سره په مقابله بوخت دی او خپل سپیڅلي هدف ته د رسېدو لپاره وروستي پړاوونه لنډوي. ان شاء الله! او دغه راز اسلامي امارت توانېدلی چې په دې ستره او اوږده مبارزه کې، د دښمن له فریبونو او چالونو سره سره، خپل اولس په ځان راټول کړي او د ازادۍ او حریت په اهمیت یې وپوهوي.

له دوه لسیزې پرلپسې مبارزې وروسته اسلامي امارت توانیدلی چې د سیمې او نړۍ په ډېرو هیوادونو خپل دریځ ومنې. اوس سیمیز او نړیوال هیوادونه هم د افغان بحران د حل لپاره د اسلامي امارت موقف تائیدوي، هغه امریکا یې په خپل تاریخ کې تر ټولو اوږدو مذاکراتو ته اړ کړې، چې د ډېر غرور له امله یې د نړۍ له سترو قدرتونو سره هم دومره اوږده مذاکرات نه دي کړي.

اسلامي امارت، چې د افغان اولس ربښتینی استازیتوب کوي، تل د افغان بحران په سولییز حل ټینګار کړی. په دې هکله څرګنده او رڼه پالیسي لري، چې له مخې یې د اشغال خاتمه د اساسي شرط په توګه یاد شوی دی. له اشغال وروسته د یو ټول شموله او ځواکمن نظام جوړېدو لپاره له ټولو افغاني سیاسیونو سره د افغانانو په حیث خبرو ته چمتوالی ښودل شوی. او دغه راز ټینګار شوی چې اسلامي امارت هیڅکله په انحصاري واک تاکید نه لري.

اسلامي امارت د الله تعالی په توفیق او فضل دا وړتیا لري، چې راتلونکي کې د افغان مسلمان اولس په استازیتوب یو ځواکمن او مرکزي نظام رامنځته کړي، د افغانستان ټول قومونه په ځان راټول کړي، د نږدې نیمې پیړۍ جګړو وران کړی هیواد ودان او د نړۍ له هیوداونو سره سیال کړي او دغه راز د تېرو څلوېښتو کلونو جګړو ځپلي اولس ته امن او سوکالي راوړي. ان شاءالله!

مصاحبه اختصاصي مجله ځرک با کارشناس مسائل سياسي وجهادی کشور

# محترم (انعام الله سمنګاني)

- سال ۲۰۱۹ میلادی در عرصه نظامی سال پر دستآوردی برای **امارت اسلامی** بودمجاهدین توانستند بر علاوه از ساحات وسیعی در بخش های مختلف کشور مراکز ۲۸ ولسوالی را نیز در ۱٦ ولایات در سیطره خود بیاورند

- نتیجه **دیپلماسی کامیاب امارت اسلامی** است که جامعه جهانی دانست طالبان کِی ها اند و چرا می جنگند

سوال: جناب سمنګاني صاحب ملت رنجیده وستمدیده افغانستان در سال ۲۰۱۹ که گذشت مشکلات ومصایب عمده شان که تحمل کردن چه بودند؟

جواب: بسم الله الرحمن الرحیم - حامدا و مصلیا و بعد؛ سال گذشته میلادی، باز هم سال خونین و مرگباری برای مردم افغانستان بود. متاسفانه، جنگ دو دهه امریکا در افغانستان شکل کشتار مردم بی گناه ملکی را از خود کرده است، و یا به تعبیر دیگر؛ امریکا پس از شکست در برابر افغان ها، انتقام خود را از غیر نظامیان افغان می گیرد. اداره دست نشانده کابل نیز امریکایی های وحشی را در کشتار و شکنجه هموطنان خود، بی دریغانه یاری می دهد. جنایات وحشیانه امریکایی ها چنان برملا شده است که سازمان ها و نهادهای جانبدار همچو یوناما هم دیگر نتوانسته اند بر آن پرده بیندازند. یوناما اعتراف کرده است که در شش ماه اول سال ۲۰۱۹، ۷۱۷ نفر ملکی توسط عساکر اداره کابل و در جریان حملات هوایی نظامیان امریکا و ناتو کشته شده اند، در حالی که آمار واقعی یقینا به مراتب بالاتر است. راپور سالانه کمیسیون جلوگیری از تلفات ملکی امارت اسلامی نشان می دهد که سال ۲۰۱۹ شاهد ۲۰۷۹ رویدادهای تلفات ملکی از سوی امریکایی ها و عساکر اداره کابل بوده است. امروز، نه اماکن عامه در افغانستان مصئون است و نه مقامات مقدسه. همه روزه قریه ها و خانه ها با خاک یکسان می شود، و بیشترین تعداد قربانیان را زنان و کودکان افغان

تشکیل می دهند. افغانستان و افغان ها یقینا با فاجعه بزرگ بشری دچارند.

سوال: چرا رژیم کابل و آمریکایی ها به قتل عام و نسل کشی ملت افغان طی یک استراتیژی آستین بر زده اند، و چه اهداف پنهانی را می خواهند به آن دست یابند؟

جواب: امریکایی ها با شعار «جنگ علیه تروریسم» بر افغانستان یورش آوردند. اما با گذشت هجده و نزده سال، جهان هنوز هم از معنا و مصداق واقعی تروریسم آگاهی ندارد. البته؛ امریکایی ها و متحدان شان در صحنه عمل نشان داده اند که هدف آن ها از تروریسم چه مردمی اند. آن ها به بهانه تروریسم، همواره مسلمان ها را کوبیده اند. استراتژی وحشیانه امریکایی ها ثابت ساخته است که طالبان و یا شیخ اسامه بهانه های بودند، هدف شوم و واقعی آن ها سرنگونی نظام اسلامی و سرکوبی ملت متدین افغانستان بود. هشدار دونالد ترامپ در مورد کشتار ده ملیون افغان ها، بیانگر برآشفتگی باطنی آن ها در برابر مردم اسلام پرور این کشور است. موج تازه وحشت امریکایی ها در برابر مساجد، مدارس، علما، روحانیون و مردم مسلمان افغانستان، حکایت از ترس امریکا از آینده تابناک اسلام درین کشور دارد. شکی نیست که تروریستان واقعی، امریکایی های اند که دستان شان به خون بی گناهان و ویرانی اماکن عمومی و مقامات مقدسه آلوده است.

سوال: به نظر شما آمریکایی ها قطعه صفر ۱ - صفر ۲ و سایر دیگر قطعات قاتل را چه نوع روحیه سازی می نمایند، چگونه آموزش می دهند، و چه نوع افراد در آن جذب شده اند؟

جواب: افغان ها با نام های قطعات صفر ۱، ۲ و ۳ به سبب جنایت های که در هلمند، قندهار، ننگرهار، فراه و دیگر نقاط کشور انجام داده اند، معرفی شدند. این قطعات که ظاهرا به ارگان استخباراتی اداره کابل اما در حقیقت به پینتاگون وابسته اند، به نماد وحشت در کشور تبدیل شده اند. امریکایی ها پس از اینکه با تلفات بزرگی در عملیات های زمینی رو برو شدند، شمار نیروهای خود را در افغانستان کاهش دادند و فعالیت های شان را بیشتر به حملات هوایی و عملیات های شب هنگام محدود ساختند.

امریکا با ایجاد چنین قطعاتی که وظیفه وحشت و جنایات آن ها را بهتر ازان ها به پیش ببرند، تلاش کرد نه تنها فقدان خود را جبران کند، بلکه مسئولیت کشتار افغان ها را نیز بدوش خود «افغان ها» بیاندازد و خود را بی گناه جلوه بدهند.

امریکایی ها کسانی را که برای این جنگ نیابتی خود انتخاب می کنند، اولا از روحیه اسلامی و افغانی بیگانه می سازند و یا اصلا از پدران و نیاکان شان ارزش های دینی و ملی برای شان اهمیتی نمی داشته باشد، تا همچو عزیزالله کاروان (قومندان قطعه صفر یک پکتیا که در حمله مجاهدین در کابل کشته شد) و امثال او از هیچگونه جنایتی در برابر هموطنان مسلمان خود دریغ نکنند، ایشان کسانی اند که به اهداف امریکایی ها نسبت به دیگران بیشتر متعهد اند و بالمقابل از امتیازات بالاتری برخوردار اند.

سوال: به نظر شما امارت اسلامی در جریان سال گذشته چه دستاوردهای چشمگیری در میدان نظامی و سیاسی داشته است؟

جواب: سال ۲۰۱۹ میلادی در عرصه های سیاسی و نظامی سال پر دستآوردی برای امارت اسلامی بود. مجاهدین امارت اسلامی توانستند بر علاوه از ساحات وسیعی در بخش های مختلف کشور مراکز ۲۸ ولسوالی را نیز در ۱۶ ولایات در سیطره خود بیاورند. تنها ۱۴ ولسوالی در ماه سبتمبر که ماه انتخابات نام نهاد ریاست جمهوری اداره کابل نیز بود در تخار، قندوز، بغلان، سمنگان، فاریاب و فراه فتح شد. ناکامی توطئه انتخاباتی در حقیقت پیروزی بزرگ امارت اسلامی بود. از یکسو اگر مجاهدین با انجام دادن بیش از ۵ صد عملیات خورد و بزرگ نظامی در روز انتخابات، از تطبیق پروسه نام نهاد رای دهی جلوگیری کردند، از سوی دیگر مردم در ساحات زیر کنترول اداره کابل و حتی در پایتخت کشور نیز به صدای برحق امارت اسلامی لبیک گفتند و از رفتن به مراکز رای دهی خودداری کردند.

در عرصه سیاست، ۲۰۱۹ سال بی پیشینه ای بود که جهانیان امارت اسلامی را به معنای واقعی شناختند. روند مذاکرات با امریکا، نشست های تفاهم بین الافغانی و سفرها و ملاقات های پیهم تیم سیاسی امارت اسلامی، فصل

هزینه جنگ افغانستان برای آمریکا

۲،■■■،■■■،■■■،■■■ دالر

علیحده ای در تاریخ ۲۵ ساله تحریک اسلامی و امارت اسلامی است که به آب زر باید نوشت. بر خلاف آنچه رسانه های استعماری و زرخرید پروپاگند می کردند، امارت اسلامی ثابت کرد که از چه نیروی بزرگ منطق و سیاست برخوردار است. این نتیجه دیپلماسی کامیاب امارت اسلامی است که داعیه امارت اسلامی خوب تر درخشید و جامعه جهانی دانست که طالبان کِی ها اند و چرا می جنگند. در گذشته، چنین تبلیغات می شد که افغان ها تنها به اساس خصلت جنگجویانه شان می جنگند و کدام هدف مشروعی ندارند. امروز بسیاری از کشورها حتی متحدان امریکا، بر پالیسی خود در قبال افغانستان بازنگری می کنند و یا کرده اند.

سوال: در نتیجه عملیات های پاکسازی امارت اسلامی چندین فرمانده و افرادِ ستیزه جویان داعش کشته شدند، و آنهایی که زنده ماندند به رژیم کابل پناه بردند، پس به نظر شما تا چه حد امکان دارد که رژیم کابل بار دیگر از داعشیان فراری استفاده کرده و دوباره آنها را در کدام مناطق کشور مستقر می سازند؟

جواب: انتقال فتنه داعش به مرزها و مناطق افغانستان، توطئه بزرگی در برابر جهاد و مقاومت افغان ها بر ضد امریکا بود. پیروزی اخیر مجاهدین امارت اسلامی در ننگرهار و پناه بردن داعشی ها به آغوش اداره کابل، چهره سیاه اداره کابل را سیاه تر و چهره واقعی داعشی ها را فاش تر ساخت. واقعیت اینست که چنین افرادی وابسته به شبکه های استخباراتی دشمن سرنوشت و انجام خوبی نمی داشته باشند، ایشان هرگاه از افادیت بمانند ارزش خود را از دست می دهند. این یک واقعیت مسلّم است که داعشی ها در قلب افغان ها و جامعه افغانی جا پیدا نکردند و تلاش های امریکا و اداره کابل برای احیای مجدد آن ها نیز چندان نتیجه ای نخواهد داد. امریکا نه تنها در جنگ مستقیم بلکه در جنگ نیابتی نیز در برابر افغان ها ناکام مانده است.

سوال: در جریان سال در عرصه دیپلماتیک، اخباری مبنی بر اینکه رئیس جمهور آمریکا دونالد ترامپ توافقنامه صلح با امارت اسلامی را در آخرین لحظات به ذریعه یک تویت به تعلیق درآورد، پس به فکر شما آیا دلیل اصلی آن تویت چه بود؟

جواب: آن چه را ترامپ برای تعلیق مذاکرات بهانه گرفت، برای هیچکسی باورکردنی و پذیرفتنی نبود. قتل یک افسر- نظامی امریکایی، در حالی که وضعیت جنگی باشد، هرگز دلیل برای لغو گفتگوها شده نمی تواند. هدف واقعی ترامپ شاید افزودن فشار بر امارت اسلامی بود، تا اندکی از موقف خود فرود آیند و با حضور در کمپ دیوید، بعضی از خواسته های نامشروع امریکا را بپذیرند. اما او شاید فراموش کرده بود که امریکایی ها امروز بیشتر از امارت اسلامی به مذاکرات نیاز دارند، تا راه آبرومندانه بیرون رفت از منجلاب افغانستان را پیدا کنند. این هم حقیقت مبرهن است که حلقه خاصی در پینتاگون وجود دارد که به هر صورت خواهان تداوم جنگ در افغانستان و یا دیگر نقاط جهان هستند. امکان دارد ترامپ شکار دام این حلقه جنگجوی پینتاگون شده باشد. در حالیکه ترامپ پیش از رسیدن به کاخ سفید و حتی در جریان کمپاین های



انتخاباتی ۲۰۱۶، از سرسخت ترین مخالفان جنگ افغانستان بود و این جنگ را بی فایده می خواند.

اما چنانکه امید برده می شد، امریکا پس از سه ماه دوباره به میز مذاکرات برگشت. اگر ترامپ بتواند در نتیجه مذاکرات کامیاب با امارت اسلامی، جنگ افغانستان را پایان بخشد، می تواند با دست پُر و مورال خوب تری وارد انتخابات ریاست جمهوری ۲۰۲۰ شود. اما اگر بار دیگر شکار توطئه شود، یقینا این فرصت طلایی را از دست خواهد داد.

سوال: دستاوردهای سالانه امارات اسلامی در حوزه فرهنگی و نشراتی کدام ها اند، اگر مشت نمونه خروار درج ذیل نمایید؟

جواب: اداره فرهنگی و نشراتی امارت اسلامی نیز در سال گذشته خدمات شایانی داشته است. وبسایت ها و مجلات امارت اسلامی مسئولیت های شان را در پنج زبان های ملی و بین المللی خوبتر و بهتر انجام دادند، چندین کتاب های ارزشمندی خدمت هموطنان گرامی تقدیم شد، رادیو ستیشن های جدیدی فعال شد و نشرات رادیو صدای شریعت از طریق امواج اف ایم به چندین ولایات دیگر گسترش یافت. ستودیوی جهادی الاماره بر علاوه از نشر صحنه های کوتاه پیروزی ها و عملیات های نظامی، فیلم های زیبا و جالب لیزری را نیز پخش نمود، و مهم تر اینکه دشمن در عرصه شبکه های اجتماعی با همه امکانات فراوان و مدرن خود، ناتوان ماند.

حالا محققین غرب نیز می پذیرند که کارزارهای تبلیغاتی چند ملیارد دالری امریکا در برابر تکتیک های ساده اطلاعاتی طالبان مغلوب شد. اداره فرهنگی امارت اسلامی توانست تمام ماجراهای مذاکرات با امریکایی ها و نشست های تفاهم بین الافغانی را سریع تر و خوب تر بازتاب بدهد و همچنان به اتهامات و تبلیغات زهرآگین دشمن جواب های فوری و قانع کننده بدهد. چنانچه رادیوی صدای آلمان در گذارشی خود می گوید: در جریان تهاجم گروهی به ساختمان وزارت مخابرات و تکنالوژی معلوماتی، طالبان بسیار سریع تر از اداره کابل واکنش نشان داده و با نشر اعلامیه ای گفتند که آن حمله کار آن ها نیست.

سوال: جناب شما! روند نشراتی مجله سرک (ثرک) را در سال ۲۰۱۹ چگونه ارزیابی می نمایید؟

جواب: مجله معتبر و ممتاز سرک (ثرک) همواره با نشر مطالب مهم و متنوع، نقش بسزای را در سنگر مطبوعاتی مبارزه و مقاومت افغان ها ایفا نموده است. مجله سرک نه تنها فصل مهم تاریخ معاصر کشور را در سینه خود جا داده، بلکه با آثار بیش بهای علمی و فکری خود فرزندان کشور را درس استقلال و آزادگی داده است. این مجله در سال ۲۰۱۹ اگر از یکسو تکاپوی سیاسی امارت اسلامی را به نحوه احسن به تصویر کشاند، از سوی دیگر ارتقای فکری و معنوی نسل جوان کشور را هدف محوری خود قرار داد. امیدوارم که این مجله وزین بیش از پیش به مبارزه فرهنگی خود دوام بدهد و در راستای رسیدن افغان ها به افغانستان آزاد و نظام اسلامی نقش سازنده ای را ایفا نماید. خداوند متعال مساعی شبانه روزی مسئول و همکاران این مجله را به بارگاه خود قبول نماید.



## د طالبانو عملیاتو څنګه د داعش د "خراسان" څانګې

# تبلیغاتي دستګاه خاموشه کړه؟

نږدې څلور میاشتې وړاندې، طالبانو د هېواد په ختیځ ننګرهار ولایت کې پر هغو سیمو خپل ځواکونه ورمارش کړل چې د داعش د شتون له امله یې کډوالو شویو هستوګنو د بیا لیدو تمه نه درلوده.

د هر څه برخلاف، طالبانو تر دوو میاشتنیو سختو او ستونزمنو عملیاتو وروسته د زیاتو قربانیو په ورکولو سره له دې سیمو د داعش تېغر ورټول کړل – هغه څه چې مجهزو امریکایي، ناټو او د کابل حکومت ځواکونو ونه شوای کړای (او یا یې هم زړه نه ورته ښه کاوه).

د داعش ډلې پر وړاندې د طالبانو بریا یوازې د سیمو تر نیولو او پوځي برخې منحصره نه ده، بلکې دې عملیاتو د داعش د خراسان څانګې فعاله تبلیغاتي دستګاه هم خاموشه کړه.

داعش افغانستان "خراسان ولایت" بولي، او د خپلو فعالیتونو راپورونه به یې د "خراسان" تر نوم لاندې خپرول. د خپل ظهور په لومړنیو کلونو کې دې ډلې په ننګرهار ولایت کې خپله راډیو هم فعاله کړې وه، چې په معینو ساعتونو کې به یې تبلیغاتي اعلانونه او خپرونې درلودې. د داعش رسمي اژانس اعماق به بیا په "خراسان" کې د پوځي پرمختګونو یا بریاوو خبرونه په انځوریزو، ویډیویي او غږیزو بڼو خپرول.

خو د طالبانو عملیاتو دا دستګاه داسې چوپه کړې چې په هیڅ کوم رسمي ادرس د خراسان په اړه له تېرو دوو میاشتو راهیسې کوم خبر نه دی لیدل شوی. د داعش اعماق اژانس چې د ټولو ولایتونو په اړه د خبرونو نشرولو مسؤلیت لري د خراسان په اړه خپل وروستی خبر د ۲۰۱۹ز کال د نومبر په ۱٦مه خپور کړی، چې په کونړ ولایت کې د کابل حکومت پر عسکرو باندې د برید په اړه دی.

د طالبانو د عملیاتو پر مهال به دې فعال اژانس د پوځي فعالیتونو او د طالبانو د تعرضونو د دفعې په اړه حتی انځوریز خبرونه هم خپرول، خو دوه میاشتنی سکوت یې ډېر څه وايي. اعماق اژانس د داعش په لیکو کې خپل خبریالان درلودل، چې ښايي د طالبانو په بریدونو کې یا هم خنثا شوي او یا هم په واورو-پټو غرونو ته ختلي وي.

د ۲۰۱۸ز کال په نیمایي کې چې طالبانو په جوزجان کې د داعش د بېخکندۍ عملیات پیل کړي وو، هغه مهال هم اعماق تصویري خبرونه خپرول. خو د طالبانو عملیاتو تر بریا وروسته بیا په دې اړه کوم خبر خپور نه شو. د جوزجان داعشي خبریالان یا د طالبانو په عملیاتو کې قتل او یا هم ژوندي ونیول شول.

د داعش تبلیغاتي څانګه تل زیاته فعاله او چټکه پاتې شوې، اما طبیعي خبره ده چې د خپلو مسلکي خلکو په بایللو سره یې په فعالیت کې سستي راځي. په ننګرهار کې د طالبانو د عملیاتو پر مهال د دې ډلې فعالیت په خواله رسنیو کې زیات و. د لیکنو او خبرونو ترڅنګ به یې وخت ناوخت د خپلې راډیو "د بېرته

راڅرګندي شوي" ویاند غړیز پیغامونه هم خپرول. د ۲۰۱۸ز کال د ډسمبر په ۲۷مه، کابل حکومت اعلان وکړ چې د داعش ډلې د راډیو ویاند، سلطان عزیز عزام، په یوه ډرون برید کې وژل شوی دی. وروسته داعش ته منسوبو ځینو فیسبوکي حسابونو انځورونه خپاره کړل چې داسې پکې ښکارېده لکه عزام چې مړ وي.

خو د تېر ۲۰۱۹ز کال د اګست په وروستیو کې – هغه مهال طالبانو په کونړ کې د داعش پر ضد پوځي پرمختګونه کړي وو – نوموړي په مخابره کې داعش جنګیالیو ته وینا وکړه او د خپل ژوند خبر یې ورکړ. سلطان عزیز د ځان او خپلې روغتیا په اړه تر خبرو وروسته طالبان پرلپسې د ملېشو په نوم یادول او په دې ډول یې داعشیان د هغوی پر وړاندې ثابت پاتې کېدو ته هڅول.

د عزام تر مخابروي وینا وروسته، ګڼو داعشیانو پر خپلو فېسبوکي حسابونو ولیکل چې دوی وړاندې لا د نوموړي په ژوندي پاتې کېدو خبر و، خو د مشرانو د ټینګار له امله یې دا راز پټ ساتلی و. یوه داعشي لیکلي و چې عزام په ټیلیګرام په یوه غږیز پیغام کې ورته ویلي و هغه انځور چې په ډرون برید کې د نوموړي د مرګ د خبر تر خپرېدو وروسته نشر شو له ده د بېهوښۍ پر مهال اخیستل شوی و.

په داسې مهم وضعیت کې چې طالبانو په کونړ کې له داعشه پراخې سیمې لاندې کړې وې، د عزام په څېر د داعشیانو په لیکو کې د یوه محبوب کس د ژوند اعلان د دې ډلې د جنګیالیو د مورال لوړولو یوه هڅه بلل کېدای شي.

د طالبانو د عملیاتو پر مهال لا هم عزام فعال و او د داعش په غیررسمي پښتو ټلګرام چېنلونو کې به یې غږیزې ویناوې، له نیول شویو طالبانو سره د نوموړي مرکه او د ده خپل لیکلي کتابونه خپرېدې. اما، د اعماق په څېر، د نومبر له وروستیو راهیسې د نوموړي هم درک ورک دی. د دې ترڅنګ، پښتو او دري ته د داعش د رسمي تبلیغاتي موادو د غیررسمي ژباړونکې اداري ټلګرام چېنلونه هم د دې اپلیکېشن لخوا بند شوي، خو تر دې دمه یې کوم دویم یو نه دی پرانیستی.

د داعش د خراسان څانګې د تبلیغاتي دستګاوو د خاموشۍ علتونه د هغوی د کارکوونکو خنثا کېدل او یا هم غرنیو او محصورو سیمو ته د هغوی پر شاتګ کېدای شي.

که څه هم دمګړۍ په پوځي او تبلیغاتي ډګر کې د داعش د پامور څرک نه لیدل کیږي، خو ممکن په راتلونکې کې د بیا ظهور لپاره لاس وپښې ووهي.




## دلته جنګ کې د امریکې په ګټه ده!

ځینې کسان وایي چې جنګ کې د امریکا ګټه ده، طالب دې جنګ بس کړي امریکا به خپله پښې سپکې کړي.

هو! بلکل دا زه درسره منم دلته جنګ امریکې د خپلې ګټې په خاطر شروع کړی. یو طرف غواړي چې د خپلو وسلو خریداران زیات کړي او بل طرف کوشش کوي چې د غلامۍ له ژونده باغي افغان د ځان تابع او د دونیا دې ډیرو لوړو طاقت لرونکو هېوادونو به څېر یې د ځان غلام (چمچه) کړي چې هر سهار د سپینې ماڼۍ هاډوکي ته لم وواهي. خو ګوره که د امریکایي یرغل لومړی کالونو ته وګورو هلته وطن کې جنګ ورک شو هر څوک په کورونو کیناستل او څوک د دوبۍ یا سعودیه مسافر شول، همدغو اشغال راوړو باچونو بغارې شروع کړې چې طالب د زندان ته واچول شي او یا د مړ شي،. د طالب په کورونو چاپې شروع شوې، کورنه یې د بمبارونو ښکار شول، حتا د کورانۍ عام غړي یې هم په بمونو ورته کینول/ په سپیو وخواړل. نو دا خو عقل نه مني چې یو څوک دې په یو انسان دومره ظلم کوي هغه د ورته په خړو، خړو ګوري د ځان پوښتنه د نه کوي.

طالب مجبوره شوی دی، طالب همدې بلواکي نظام به لوی لاس خفه کړی او په زور یې د ځان په مقابل کې په سنګر کې دراولی، دا هم منم چې ولس طالبي نظام کې اصلاحات راوستل غوښتل خو د نظام رنګول یې په ذهن کې هم نه و، طالب د امن فریشته وه طالب لندغر، کابل رنګوونکي او ایجینټان ټول بې ټوپکه کړل.

طالب د همدې ملت له غېبرې د ظلم په خلاف راپاڅېدلی پاڅون و، طالب د بوډۍ مور چغه او د پېغلې د سر شال و، خو دومره خوار نه وو چې نړۍ دې ورته د مرګ یا زندان ګواښ وکړي. (خالد ځدراڼ)



د اسلامي امارت له نومیالي مشر شیخ القران والحدیث

# مولوي عبدالرحیم صاحب

## سره د څرک مجلې ځانګړې مرکه

**جناب شیخ صاحب د شکر او خوښۍ ځای دی، چې د متعال رب جل جلاله په خاص فضل او نصرت د مستکبرې امریکا او د هغوی د ګوډاګیانو له ناولو منګولو او تعذیب خانو څخه مو نجات او خلاصون پیدا کړ او بیرته د خپلو مجاهدینو پرګنو او ولس منځ ته راغلی الله پاک مو ټول تکالیف او کړاوونه قبول او د جهاد د بریا ذریعه وګرځوه. آمین.**

**لومړۍ پوښتنه:** جناب شیخ صیب! ستاسو شهرت او علمي مقام د تعارف محتاج نه دی خو بیا هم د مرکې د دود او اصولو په اساس که خپل تعارف د څرک مینه والو ته وکړئ خوشحاله به شو.

نحمده ونصلي علی رسوله الکریم وبعد پس الله تعالی دي وکړي، چې د ازادۍ لوی نعمت شکر ادا کړم او د امارت مشرانو او کشرانو ته په جزاهم الله خیراً سره دعا وکړم څکه د اسلامي امارت مشرتابه څخه ډیره مننه کوم.

ځما نوم عبدالرحیم د علي اصغر ځوی د حکیم لمسی د کونړ ولایت د مانوګۍ ولسوالۍ د کوړنګل اوسیدونکی یم په شمسي-قمري حساب سره یو شپته کاله عمر مې دی.

**پوښتنه:** جناب شیخ صاحب! که لطف وکړئ د دښمن لاسته د لویدو او اسارت کیسه مو راته وکړئ، چې چیرته ونیولی شوئ چیرته یې یووړئ او د اجیرو مسئولینو او مستنطقینو پوښتنې او ګرویژنې څه وې او ستاسو جوابونه او استدلال څه و؟.

ځواب: چونکه د امارت له خوا ماته امر شوی و، چې کونړ ولایت فورا ځان ورسوه ځما یو ملګری چې خواهش یې و چې ځما خدمت وکړي او ما کونړ ته ورسوئ ارتباط مې ور سره وشو بیا ما حرکت وکړو نو هغه په اصطلاح مخلص ملګری هغه ځای ته د ګاډي سره رارسیدلی و بیا ور سره ملګری شم چې دننګرهار دومندري ولسوالی اړوند عمومي سرک ته ورسولم په سرک کې کافي اندازه مزل مو وکړو، چې یو ځای کې دامنیت ملي واله کسان مخکې له مخکې راته ولاړ وو هغه کس چې زما دخدمت وعده کړې وه هغه روغ رمټ عسکروته وسپارلم داسې معلومیدو چې مخکې نه پلان راته جوړ شوی و بیا فوراً د کابل په طرف روان کړم چې شپه وه دقیق ځای راته نه دی معلوم د امنیت ملي غټ غټ مشران را ورسیدل او لویه غوښتنه یې دا وه چې دې اداری ته تسلیم شه چې ستا څه ضروریات او حاجات وي در له پوره کړو کور به در کړو او واړه به درله راولو او که وطن ته ځې وبه دی رسو و خو د دولت له پاره کار به کوی ځما ځواب دا و چې حکمتیار نه جوړیږم حکمتیار خپلو ملګرو یې په خپیړو وواهه زما ملګري به ما خامخا په ډزو ولي او نه تاسو سره وعده کولی شم چې دی غلامی اداری لپاره کار وکړم ولي چې دا غیر مشروع اداره ده بیا دغه نه ریاست نود ته ورسولم یو نفری اطاق کې کوټه قلف یې کړم.

پوښتنه: په کابل او بګرام کې د ګوډاګي رژیم چارواکو له تاسو څخه خاص مطالبې او غوښتنې څه وی آیا هغوئ کوښښ کاوه چې تاسې یوې معاملې ته چمتو کړي؟.

**ځواب:** د هغوی خاص مطالبې او غوښتنې اجیری ادارې ته تسلیمدل وه چې بیا ددغه ادارې د کارونو له پاره یې چمتو کولم.

**پوښتنه:** محترم شیخ صاحب! مزدور رژیم په ستاسې له حهادې علمي مقام او په ولس کې له محبوبیت څخه آګاه او خبرو د همدې په تناظر کې یې په چلند او برخو رد کې څه نرمښت او سهولت کاوه؟.

**ځواب:** وهل یې نه دي راکړي خو زباني ځینو نرمښت او سهولت کاوه او ځینو سختي کوله حتی په مرګ یې تهدید کړی یم.

**پوښتنه:** د پوښتنو او تحقیقاتو په مهال د غلیم ډیره هڅه څه وه، چې څه ډول معلوماتو او جزیات درنه تر لاسه کړي؟.

**ځواب:** د غلیم ډیره هڅه دا وه چې د اسلامي امارت د مشرانو ځایونه یې معلوم کړي او مالي منابع یې معلوم یې کړي.

**پوښتنه:** شیخ صاحب د زندان په اوږدو کې داسې څه څرک به نه وي درته لګیدلی چې د داعش د فتنې په اړه د کابل رژیم خوشبین او پرامیده و او نوموړي فتنې د پراختیا لپه یې درلودلي وي؟.

**ځواب:** ولي نه کابل رژیم د خپلی ګټی په خاطر د داعش د فتنې د پراختیا په لټه کې دی لکه ویل کیدل چې جوزجان ولایت کې د اسلامي امارت مجاهدینو لخوا په داعشیانو کړی را تنګه شوی ده نو کابل رژیم دوی په طیارو کې پورته کړي دي د فتنې د پراختیا په خاطر څه یې ساتلي دي او څه یې نورو ځایوته د جنګ لپاره لیګلي دي.

پو ښتنه: محترم شیخ صاحب! عمده او رسمي تورونه پر تاسو کوم و او څو ځله محکمې ته وړاندې کړی شوی؟ او د قاضیانو په رابطه که څه وضاحت را کړی چې څوک و؟ آیا کله مو کومه مباحثه ور سره راغلی ده؟.

ځواب: رسمي تورونه په ما په امارت کې والي پاتي کیدل، نظامي کمیسیون کې عضو پاتي کیدل، آی اس آی سره تعلق ساتل، د امارت او داعش تر مینځ اصلاح کول او د امریکایانو او د جواسیسو د مرګ دعوې وې. او محکمو ته دوه ځله وړاندې شوی یم یو ځل اولی محکمې ته او بل ځل دویمې محکمې ته.

چونکه په تحقیقاتو کې په ځینو دعوو مقر وم لکه په ولایت او په ځینو یې منکر وم لکه د جواسیسو مرګ، نو وکیل مې راته ویلی وو په کومو دعوو په تحقیقاتو کې اقرار دي کړی دی د هغی په محکمه کې منکر شه نو کله قاضیانو ماته د خبرو موقعه را کړه او رانه پوښتنه یې وکړه چې والي پاتي شوی یې، نو ما په جواب کې وویل چې ملک پاتي شوی یم دیرش کاله د خلکو قومي مشر-او ملک پاتي شوی یم خپل قوم مې د فتنو او فساد نه حتی الوسع ساتلي دي طالبان ما پیژنی ځما خبرو ته اعتبار ورکوي د اجیری اداري په څیر نه دي دغه وخت کې یو قاضي راته وویل چې تاسو کوم ځای نه تمویلیږی دا یو قسم ځما د خبری جواب و چې مونږ د امریکی اجیران یو او تاسو د آی اس آی خو ما ورته وویل دا خبره اوږده ده خپله موضوع پاتي کیږي ما ملکی کړی ده طالبان ځما په خوله یو ځله څلویښت کسان عسکر او بل ځل پنځلس عسکر خوشي کړي دي سوله کولی شم ما خوشی کړئ چې سوله در له وکړم او که خوشی مې نه کړئ که اعدام کوی مې نو هم پروا مې نشته ځکه عمر مې تیر شوی دی شهید به شم او که قید راکوئ نو هم پروا مې نشته خو ځما قوم ته ځما هغه ملګری معلوم دی چې په تاسو یې خرڅ کړی یم قومي فتنه او شخړه به پیدا کړئ او د قاضیانو د نومونو معلومات نه لرم چې تاسو ته یې واضح کړم.

**پوښتنه!** کله چې بګرام زندان ته یووړل شوئ هلته مو څلور ویشت ساته مشغله او وخت تېری څنګه و؟.

**ځواب:** هلته ۴۷ اوه څلویښت ورځې په یو نفري اطاق او تشنابونو کې مې تیري کړي د تلاوت د قران مجید او د اذکارو نه علاوه الله تعالی دي راته معافي وکړي په تشویشاتو کې وخت تیریده خو بیا هم تسلي مې په تقدیري الهي کیدله او د هغه نه بعد چې د زندان ملګرو سره یو ځای شوم د ملګرو په خواهش سره درس مې شروع کړه په درس او تدریس سره مې وخت تیریده.

پوښتنه: تاسو په زاندان کې له ډول ډول اسیرو افغانانو سره مخ شوی یاست داسې څو خاطرې او کیسې مو په یاد پاته دي، چې تاسې ترینه اوریدلي وي او تر اوسه مو نه وي هیری شوي؟.

**ځواب:** حقیقت دی چې مختلفو ولایتونو او مختلفو طبائعو ملګرو سره مخ شوی یو طبعي خبره ده دومره اوږد وخت چې په یو ځای کې مختلفو طبائعو والا سره تیر شي ښې خاطرې او بدې خاطرې پیدا کیږي خو که ملګرو سره بدو خاطرو په وخت کې صبر او حوصله وکړی شیی نو بیا بدی خاطرې له یاده اووځي او ښې خاطری په یاد پاتي شي لکه اکثره ولایتونو خلک د کونړ خلکو سره مذهبي اختلاف نظر لري خو په اخیره کې دغه اختلاف په محبت بدل شو حتی ځما د ویستلوپه وخت کې ټو ل د پنجرې خلکو فکر دا کاوه چې دا چیرته بلی پنجرې ته تبدیلوي نو ټولو په اتفاق سره احتجاج وکړو او وویل چې پنجره او افتابي دواړه لاک کاوو نو کله دوی ځما په خوشي کیدو خبر شول نو خوشالي نه په ما غږ وکړو چې مونږ چیرته هیر نه کړئ.

یوه نیکه کیسه مې په زندان کې اوریدله او پخوا مې هم اوریدلې وه هغه دا: دری کسان عربان د دی پنجرو او دروازو نه کرامةً وتلي دي بیا ځو مرحلو نه روسته مجاهدینو خوا ته رسیدلي دي دغه کیسه ما یو صاحب منصب ته په هغه وخت کې وکړه چې هغه په تفریح ګاه کې جالی جوړوله ما ورته وویل چې جالی تاسو څه د پاره جوړوئ که زمونږ د وتلو نه ویریږئ نو مونږ هسې هم وتلی شو کله چې مو دلته رزق ختم شي لکه دری کسان عربان وتلی ول او خلاص شوی ول هغه راته وویل دا هسې تبلیغات دي که هغوئ وتلی وي نو ته هم اووځه که وتلی شي ما ورته وویل چې زه خو د هغوئ درجی ته نه یم رسیدلی خو د هغوئ وتل پدې دلالت کوي چې مونږ پّه حقه یو او تاسو په نا حقه او د هغئ نه انکار دا ښکاره قطعی ثابتی شوی کیسی نه انکار کول دی ولي ټوله میډیا ته ثابت شوی حقیقت دی.

**پوښتنه:** جناب شیخ صاحب! د دومره ژر خلاصون تمه مو کوله؟ او تردې وړاندې قاضیانو څارنوالانو او وکیلانو د څومره پیسو غوښتنه درنه کړئ وه؟

**ځواب** هو! زر د خلاصون تمه مې ځکه کوله چې کله څلور دیرش کسیزه عمومي پنجرې ته یوړل شم هلته یو طالب العلم قاري عبدالوهاب پّه نوم د لوګر ولایت و، چې روسته بیا شاګر مې هم شو دا ایت یې (قل یا عبادي الذین اسرفوا علی انفسهم لا تقنطوا من رحمة الله. الایة). راته ولوستله بیا مې روسته هر وخت کې دا ایت مې په زړه کې را په یادیدو نو د خلاصون تمه مې پیدا کیدله او قاضیانو، څارنوالانو او وکیلانو د پیسو غوښتنه نه کوله ځکه ځما بچو د وکیل سره د پیسو خبره کړی وه او ما هم ورته وویل چې د پیسو خبره وکړه هغه راته وویل چې ستا په حقله د پیسو خبره نه شي کیدای ځکه چې ما څارنوال سره د پیسو خبره وکړه څارنوال راته وویل چې پیسې خو مې خوښې دي خو په هغه پیسو به زه څه وکړم چې په خپله د هغئ له وجې نه بندي او بی عزته کیږم البته د دوی نه علاوه نورو دلالانو ځما د ځامنونه پنځوس زره ډالره غوښتی ول هغوی سره وکیل مې خبری کړی دی ورته ویلی وه که اطمناني خبره لاس په لاس کیدای شي نو پنځوس زره نه شپته زره به ورکړم خو هغوی تضمین او اطمنان نه و ورکړی.

**پوښتنه:** د خپل خلاصون کیسه راته وکړئ چې څنګه خلاصون او چیرته مو تبادله وشوه؟.

**ځواب:** چونکه وکیل مې راته ویلی و چې ته د صلحې په جریان کې تبادلی په لستونو کې لیکل شوی یې فلهذا په جریان د محاکمو کې تمه مې وه چې خلاصیږم به آن چې دریمه محکمه مې هم وشوه بیا کله چې ټرمپ صلحه لغوه اعلان کړه نو مونږ ټول اسیران مایوسه شو، مونږ د مایوسی حالت کې وو، په دغه وخت کې زه د پنجرې نه ووستل شوم آن چې بایو موټرک ته ورسول شم او نورو ملګرو سره یو ځای شوم نو ملګرو یو بل ته د مبارکی زیری ورکاوه چې مونږ د دری کسانو هندوانو پّه تبادله کې خوشي کیږو بیا د بګرام نه د کابل ریاست چهل ته انتقال شو هلته مو لس ورځې تیری کړی بیا د ریاست چهل نه بغلان ولایت ته انتقال شو هلته هم یوه شپه د بندیتوب په حالت کې د امنیت سره مو تیره کړه بیا ۱۴/۷/۱۳۹۸ ش ه د پل خمري ښار د مینځی ګیرئ په کور کې دری کسان هندوان د هغه ځای د سپین ګیرو په توسط اجیری اداری ته حواله شول او مونږ د اسلامي امارت د بامیانو ولایت والي محمد یونس (مخلص) صاحب او بغلان مسئولینو ته حواله شو.

**پوښتنه:** عزتمند شیخ صاحب! یو مجاهد چې د اسلام د غلیمانو لاسته ورشي او زنداني کړل شي د عبادت او ریاضت په برخه کې ورته څه کول په کار دي ترڅو وکولای شي یو اسیر د زندان غمجن اوله کړاوونو ډک ژوند د صبر او اطمنان په وسله څه ناڅه اسانه تیر کړي.



کوي او باګرام نه ارګ ته نه تلل او اشرف غني راغوښتل باګرام ته دا د ټرمپ د باداري او اشرغني په غلامی صریح او ښکاره دلیل دی.

**پوښتنه:** جناب شیخ صاحب! د وروستي پوښتنې په توکه، مجاهدینو او طالبانوته مو بالعموم او د زندان اسیرو ځوانانوته مو بالخصوص توصیې څه دی؟.

عام مجاهدینو او طالبانو ته ځما دا توصیه ده: لکه څنګه د دوی د اول سر نه په اخلاص را پاڅیدلی دي د امریکایانو او ګوډاګیانو سره جهاد شروع کړی دی او قرباني او شهیدان ور کړی دی همداسې قربانیو ته دوام دي ور کړي تر څو افغانستان پاکه خاوره د اشغالګرو څخه پاکه شي او کما في السابق شریعت نافذ (پلی) شي ځکه بقا د اسلام سرلوړی او د امت مسلمه او د اسلامي مراکزو ساتل بلکه بقا د زمکی په مقدس جهاد سره رازي الله تعالی فرمایې (ولولا دفع الله الناس بعضهم ببعض لفسدت الارض. الاية) که الله تعالی دفع کول ځینو خلکو سره په ځینو نورو نه وای نو زمکه به ورانه شوی وه.

خلاصه دا که جهاد في سبیل الله نه وای نو د توحید واله به ټول ختم شوی به ول چې د دوی په ختمیدو سره زمکه ختمیږي رسول الله صلی الله وعلیه وسلم فرمایي (لاتقوم الساعة حتی لا یقال فی الارض الله الله) ورځ د قیامت چې قائمیږي په هغه وخت کې قائمیږي چې په مخ د زمکه کې الله الله ویلو واله څوک نه وي (لا اله الا الله) کلمي واله څوک نه وي.

کلمه چې پاتي کیږي دا د جهاد په وجه پاتي کیږي.

او اسیرانو ته مې توصیه دا ده چې دوی دي اذکار و او مونځونو او دعاګانو سره صبر او استقامت په ځان کې پیدا کړی خصوصا (لاحول ولا قوة الا بالله) ډیر دي ذکر کړي ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم. عوف بن مالک رضي الله تعالی عنه ته فرمائلی ده چې ځوی یې د کافرو سره بندي و: تاسو ووایې ورته چې (لاحول ولا قوة الا بالله) ډیر ډیر دي وایې هر کله اسیر ته دا ورد ورسید نو هغه پدې عمل شروع کړه چې په پائله کې د زندان نه د غنیمت سلو اوخانو سره را خلاص شو.

اعوذ بالله من الشیطان الرجیم (یاایها الذین امنوا استعینوا بالصبر والصلوة).

وایضا قال تعالی (الا بذکر الله تطمئن القلوب). دا حقیقت دی چې د الله تعالی د طرفته قسم قسم امتحانات په مسلمان راځي د امتحاناتو څخه یو غټ امتحان زنداني کیدل دی، زنداني سره پکار دی چې د الله تعالی د فرمان مطابق صبر او مونځونه او اذکارو ته دوام ورکړی خصوصا د تهجدو لاحول ولا قوة الا بالله او استغفار پاوپندي وکړی ځکه د اعمال په زړونو کې اطمنان او په کارونو کې اسانتیا او مشکلاتو څخه خلاصون او نجاد راولي.

**پوښتنه:** جناب شیخ صیب! په ټولنیز ډول په افغانستان کې د امریکا او د هغوئ د ګوډاګیانو حالت څه ډول ارزوئ؟.

ان شاء الله امریکایانو او د هغوئ د ګوډاګیانو روحیه ډیر کمزوری ده او شکست سره مخ دي او د افغانستان څخه د وتلو په حالت کې دي.

**پوښتنه:** جناب شیخ صیب! په دې وروستیو کې د امریکا ولس ټرمپ په خفیه طور باګرام ته راغی، په داسې حال کې چې اشرف غني او د هغه اداره یې هم له مخکې نه وه خبره کړي مطبوعات هم پرې خبر نه وه بیا یې اشرف غني باګرام ته وروغوښت او ټرمپ له باګرام نه ارګ ته هم ورنغی. ستاسو په اند د دی غیر علنې راتګ او د اشرف غني باګرام ته د غوښتلو لامل څه و او د راتګ څنګه ار زوئ؟.

د ټرمپ پټ راتګ باګرام ته او د افغانستان اجیره اداره نه خبرول دا د دوی په ضعف او کمزور والی د روحیې باندې دلالت

# ټرمپ او د واشنګټن پوسټ نوی کتاب...!!

موسی فرهاد



د امریکا د مشهوري ورځپاڼې واشنګټن پوسټ، دوو تنو لیکوالانو Rucke Carol Leonnig and Philip (کارول لیونینګ او پیلیپ روکې) په ګډه تازه یو کتاب لیکلی، چې نوم یې دی A very stable genius (یو ډېر وتلی نابغه) دا نوم هم په اصل کې د ډونالډ ټرمپ د خولې یوه جمله ده چې نوموړي څو ځله په خپلو تقاریرو کې د ځان د ستاینې لپاره کارولې، چې زه یو ډېر وتلی نابغه انسان یم.

په یاد کتاب کې دغو دوو تنو لیکوالانو د ټرمپ په اړه ډېر داسي څه را ټول کړي چې د هغه د نبوغ پرځای د هغه ناپوهي څرګندوي.

د بیلګې په توګه یې په مقدماتي راپور کې څو خبري ذکر شوي دي، په کتاب کې راغلي چې د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ د تاریخي او جغرافیایي مالوماتو څخه دومره ناخبره دی چې د چین او هند ترمنځ په مشترکه پوله او د همدې پولي پرسر د نوموړو هیوادو ترمنځ د تاریخي تشنج په اړه هیڅ خبر نه دی.

یادو لیکوالانو ویلي چې ټرمپ یوځل د هند له لومړي وزیر نریندرا مودي سره په هغه غونډه کې چې د هندوستان او چین ترمنځ د ترینګلتیا په اړه رابلل شوې وه؛ مودي ته وویل: چین څنګه تاسو ته تهدید جوړولای شي، هغه خو ستاسي سره پوله نلري.

د کتاب په وینا، د ټرمپ له دغي ناشولتیې سره د نریندرا مودي سترګي برګي را وختې، هیښ پاتي شو.

په داسي حال کې چې د هند او چین ترمنځ اوږده ګډه پوله شته، دواړو هیوادونو په ۱۹۶۲م کال کې د همالیې په سیمه کې له یو وبل سره نښتي کړي دي. (مطلب دا چې د چین او هند ترمنځ هم جغرافیایي اشتراک شته او هم یې تاریخي جګړې کړي، خو ټرمپ یې نه له پولي او نه له تاریخي جګړې خبر دی.)

لیکوالانو په خپل کتاب کې ویلي، چې د ټرمپ یو نږدې مرستیال مور ته وویل چې له یادي غونډې وروسته هندوان بیرته له هغه څه نه پرشا شول چې غوښتل یې امریکا ته د چین او هند ترمنځ په لانجه کې د درېیمګړي ډیپلوماتیک رول ورکړي.

د کتاب په وینا چې دا د امریکا لپاره یوه ستره ډیپلوماتیکه ناکامي وه، چې فقط د ټرمپ د ناپوهي له امله رامنځ ته شوه.

لیکوالانو په خپل کتاب کې د ټرمپ بله کیسه داسي بیان کړي چې وایي ټرمپ ته ویل شوي و چې د (یوایس اریزونا) په نوم د هغې امریکایی جنګي کښتۍ؛ چې د جاپاني الوتکو له خوا د ۱۹۴۱م په دسمبر کې په (پیرل هاربر) ساحل کې غرقه شوې وه؛ لمانځغونډې ته ورشي؛ پرلاره په الوتکه کې ټرمپ یو ناڅاپه جان کیلي ته ( چې د سپیني مانۍ ستر سلاکار دی)؛ وویل: جان! دا څه کیسه ده، مور چیرته ځو؟ او ولي، د څه مقصد دپاره؟

ګویا دا د امریکا په تاریخ کې یوه غټه پیښه وه، چې هرکال هر ولسمشر د هغوی د یاد لپاره ورځي، خو ټرمپ له دې پیښې نه ناخبره او نه پوهیده چې چیرته او د څه لپاره ځي.

په کتاب کې، د سپیني مانۍ د یو پخوانی سترسلاکارله خولي ویل شوي چې ټرمپ ځیني وختونه دومره



له حالاتو نه ناخبره او ناپوه وي چې ان ډېر خطرناک واقع کیدلای شي.

په کتاب کې ویل شوي، چې یوځل ټرمپ خپل مخکني خارجه وزیر ریکس ټیلرسن ته وویل، ته ولي په دې کار کې هڅه نه کوي چې په بهرنیو هیوادونو کې د امریکایی کمپنیو په وړاندي هغه فاسد قانون ختم کړي چې د امریکایی شرکتونو د رشوت ورکولو مخه نیسي.

(یعني که امریکایی کمپنۍ وغواړي چې په یو بهرني هیواد کې کومه پروژه د رشوت په بدل کې ترلاسه کړي، نو باید دا لاره یې خلاصه وي، چې بیا بل څوک ونشي کولای چې ترانزیتي معاهدې له امریکایی کمپنیو پرته له بل چا سره وشي. چون په هغو هیوادونو کې قانون موجود وي چې وګړي او په خاصه توګه چارواکي یې رشوت نشي اخیستلی، په ځانګړي توګه په داسي مسایلو کې چې بهرنیانو ته په خپل هیواد کې د رشوت په بدل کې پروژې په ټیکه ورکړي او یا ورسره تجارتي هوکړې وکړي. خو ټرمپ دا کار نه مني چې د امریکایي کمپنیو په وړاندي دې د رشوت ورکولو قانون نافذ وي. نوموړی داسي فکر کوي چې له امریکا پرته په نړۍ کې هم د ده امر چلیږي.)

لیکوالان وایي، چې ټرمپ ویل، زه به دا بې انصافه کار هیڅکله ونه زغمم، او د امریکایی کمپنیو لپاره به په نړۍ کې د رشوت ورکولو لاره خلاصه کړم، د رشوت د مخنیوي قانون به په زور ختم کړم، ترڅو امریکایی کمپنۍ ګټي ترلاسه کړي.

او داسي نوري ډېري خبري په یاد کتاب کې راغلي چې د ټرمپ د نبوغ پرځای د هغه جهالت ښیي.

پای ........!

# د اسلامي نړۍ موجوده ستونزې!

# او د کوالالامپور اعلامیه!

■ ابو ظهیر

څه موده وړاندې دپرمختللي اسلامي هیواد «ملیزیا» په پلازمینې (کوالالامپور) کې شاوخواشلواسلامي هیوادو یوه مهمه سرمشریزه ددې لپاره بلل شوې وه،څو په هغه کې نن ورځ اسلامي نړۍ او مسلمانانوته دورپېښو ستونزو حلولو په باب دیوبل نظرونوته غوږ شي، او پرې دغور کولو وروسته یوه خپلمنځي جامع تګلاره وړاندې کړي.

دیادې سرمشریزې په پای کې دګډونوالو هیوادوله لوري یوه اعلامیه هم خپره شوه،په کومه کې چې د معنویت اومحتوا له پلوه خورا ازرښتمن اوګټورمفاهیم ځای کړای شوي دي.

بناءًمونږ غواړو دیوې لنډې ارزونې اوکتنې سره یوځای پښتوکې کټ مټ هغه اعلامیه خپلو لوستونکوته وړاندې کړو.

دیادونې وړده د کوالالامپور سرمشریزې په پای کې اعلامیه دسرمشریزې د بلونکي « داکټر مهاتیر محمد» لخوا ولوستل شوه، په کومه کې چې د اسلامي نړۍ د ستونزو اومشکلاتو حلولو پر هوډ د قوي ګامونو پورته کولو پر ضرورت ټینګارشوی دی.

په دې وجه نړۍ کې داسلامي نړۍ دعامو وګړولخوا یې خوراتود هرکلی او ستاینه هم شوې ده او دا هوډ یې یو پرځای او معقول ګام ګڼلی، بل پلو ته ځینې مهمو اسلامي هیوادونو لکه سعودي عربستان، عربي اماراتو اوپاکستان بیا دیادې سرمشریزې سره پریکون کړی و، د هغوی په اند: د کوالالامپور اسلامي سرمشریزې اصلي موخه د«اسلامي کانفرانس تنظیم» کمزوره کولو هڅه ده او دوی نه غواړي چې «اسلامي کانفرانس تنظیم» کمزوری شي اویادې دهغه دبدیل په توګه کوم بل نوی ستیج رامنځته کړای شي

داسلامي نړۍ ثقه او تجربه کارمبصرین باورلري چې یوداسې قیادت ته ضرورت شته چې هغه داسلامي امت داجتماعي مسائلو اوداسلامي هیوادود ستونزوحلولو اودنړۍ دجابرو اوظالموځواکونو په کلابندۍ کې دمحصورو او بیوسه مسلمانانو دنجات لپاره په نړیواله سطحه مؤثر اوصادقانه غږپورته کړي

څو دښکېلاکګرو ځواکونوله کشمکش نه اسلامي نړۍ بیرون کولو، دپخواني برم او خپلواک حیثیت بیا مندلولپاره مؤثرکردار اداء کړي

لومړي نړیوال جنګ کې دجرمني اواروپا ترمنځ جنګ کې د اسلامي نړۍ په فریق ګرځېدو او وروسته دامریکا او روسیې ترمنځ دسړې جګړې په کشمکش کې په ښکېل کېدو سره اسلامي نړۍ چې کوم نقصانونه ولیدل، هغه دپوهاوی لپاره بس دي؛ په اوسنې تناظرکې باید دامریکائي کیمپ اودهغې داجندا له جال نه داسلامي امت دویستلو لپاره دي لارې ګودرې ومندل شي

سائنسي او نویوتجربوي علوموکې، په اقتصادي اومالي برخوکې داسلامي



هیـوادو دپرمختـگ پـه وړانـدې پراتـه خنډونه په گوته کول اوبیا په پوره توگـه دهغـو دلمنځـه وړلـو لپـاره داسـلامي هیوادونو عملي رهنمائي کولوته اړتیاده

پر اسلامي هیـوادو بانـدې دپردیو کلتورونولـه یرغلونـو څخـه داسـلامي تهذیب، کلتور او دیـن خونـدي کـول او اسلامي امـت پخپلـو دینـي او تهـذیبي اقداروباندې ودرولـو لپاره مؤثرحمکـت عملي جوړولواړتیاده

په اسلامي ټولنه کـې دقـرآن وسـنت پـه احکامو او قوانینـو دعمـل لپاره مـاحول اوزمینه سازي رامنځته کولوضرورت دی

دا چې پورتنیو عواملو اوترجیحـاتو ته د کوالالامپور په اعلامیه کې ترېوحده اشاره شوې اوهم یې دحلولو هـوډ ښـودل شـوی دی،نـو پـه نـړۍ کـې دعـامو مسـلمانانو لـه لـوري هـم پـه ښـه تـاوده هرکلي سره بدرگه شوي او هم یـې دلتـه موږ دخپلو لوستونکو سره شریکوو.

## دکوالالامپـــور (۲۰۱۹ز) سرمشریزې اعلامیه

مـوږ د هغـو پرمختگونـو سـتاینه کوو،کـــوم چـــې ډاکټرمهاتیرمحمـــد دکوالالامپـــور «سـمټ» د پخوانیــو کانفرانسونو رهبري کولو لـه لارې کـړې دي، چې هدف یې دخپلمنځـي نظرونو اوریـدلو لپـاره لـه مختلفوجهتونـو یـو نړیـوال قیـادت رامنځتــه کـول او د اسـلامي امـت نـه د چـاپیره مصـائبو اوسـتونزو کمولولپـاره ممکنـه زرایـع برابرول دي

مـوږ لـه«سـمټ» سره مرکـزي اوخپلمنځي مربوطو اومنسلکو اهدافو له لارې دامت دسرلـوړۍ لپاره اجتماعـي مسؤلیتونه پـه لانـدې ډول تـرسره کـول غواړو:

۱-: مسلسل پرمختگ

۲-: دواکمنۍ صفااوسوتره طرز

۳-: کلتور اوپیژندنه

۴-: امن،عدل او ازادي

۵-: خپلواکې، امن او دفاع

٦ـ: سوداگري اوپانگونه

۷-: ټیکنالوجي او گورننس

۱ــ مـوږ پـه اقتصـادي میـدان کـې خپلمنځـي کومکونه،همـدا راز پـه اهمـو میـدانونوکې دټیکنـالوجۍ گټـو عـاملو پراهمیــت بانــدې ټینگــارکووځو اوس مهال اسلامي امت ته ورپـیښ مشـکلات قابوکړای شو.

۲ــ موږ ټینگارلرو چې د«سـمټ» نوعیت دتزویراتي کومک دی، څوک چې دهغــه کوښښــونودلا تقویــت لپـــاره کــارکوي،کوم چــې داســلامي هیــوادو ترمنځ مختلفې اتحادیې سرته رسوي لکه « اوای سي» او«ډي ایـټ داقتصـــادي تعـــاون لپـــاره»ددې لپــاره مورټولــو مسـلمانانوته کـه هغـه حکومتونـه دي یانونورې مؤثرې اداري! بلنه ورکـوو چـې هغـوی دي د«سـمټ» پـه راتلونکـو کارونوکې برخه واخلي او ښکاره دي وي چې سمټ به د۲۰۲۰ زکال څخه په یونوي نوم کارپیلوي یعنـې [ پردانا فاونډیشن برای تهذیبي مکالمه]

۳ــــ مـوږ دهغـه ټولـو وړانـدیزونو دعملي کولو ژمنه کوو، کوم چې سمټ داسلامي کلتور ژونـدي کـولـو پـه اړه، او ورته دنړۍ په قومونوکې دقـدر پـه نظر کتل کېږي، هـم داراز داسلامي امـت د اوسني حالـت دښـه کولـواو داقتصـادي ودې، سائنسي او ټیکنالوجۍ، اودایجادو اختراع دایرې غځولو پـه ضـمن کـې یـې

طـی کـړي دي څـو دراتلونکـو نسـلونو راتلونکی غوره وګڼل شي

۴ـــ مـوږ مکـرر عهـد کـوو چې د داسې امت دتشکیل لپاره کوښښونه کوو چې هغـه بالفعـل ازاد ژونـد وکـړای شي دعزت اوخوشالۍ نه برخمن شي، دغوره اجتماعي او اقتصادي مواقعـو دترلاسـه کولو لپاره دتعلیم اوهنر پـه لـوړه درجـه فـایز وي او دامـن اوعـدل سره کومـک وکړي او دنړیوالي وروروولۍ پـه خـدمت کې خپله ونډه زیاته کړي

۵ـــ موږداسلامي تهذیب ژونـدی کولـو هـدف دحصول او دامـت لـوړو ګټوخونـدي کولـو لپـاره دتوپیراوتنـوع باوجود، دامت دهررکن دکردار قدرکوو

۶ـــ موږ دخپـل هغـه عـزم اظهـار کوو چې دمسلمانانوپه توګه به خپلمنځي یـو والـی مسـتحکم ګرځـوو، دترقـۍ اوجدت پـه جهـت کـې دامـت دارادو او عزایمو تازه کولو او هغوته درشـد ورکولـو لپاره،او امت ته دورپیښو مشکلاتو دحـل او دنویو تدبیرونو غوره کولـو لپـاره خپـل ټـول صـلاحیتونه او وسـائل کـاروو، دکومواسـاس چې داسلام پـر اعتقـادي اساساتواو پـر هغولارښوونو بـه وي، چې عظیم الشان قران موږ ته را ښودلي.

۷ـــــ مـوږ د اسلامي هیـوادو د پرمختګ اړتیاوو په ګوته کولو، داقتصاد، سـوداګرۍ او پـانګونې، صـنعت او سائنـسي څیړنـو، او داسـلامي مـالي مصنوعاتو پـه میـدان کـې دچانسـونو منـدلو، پـه مختلفواسـاسي څـانګوکې دتخنیکي ترقـۍ ډیرولو،دفسـاد لمنځـه وړلو، دانشمندانه طرز واکمنۍ جوړولو، دپیژند ګلوۍ بحران،او داسلام فوبیا پشان ګواښونو پرلمنځه وړلو زور راوړو.

۸ـــ موږ ژمنه کوو چې پـه مختلفـو میدانوکې د نظرونـو اوخطابـاتو تبادلـه، پالیسۍ جوړول، او دوړانـدیزونو حوصله افزائي کول ترجامعو تدبیرونو پـورې اړه لري، په دې لړکـې مـوږ داسلامي نـړۍ ټولـو مؤثرومسـؤلینو«چـې پکـې دینـي علـماء، دولتـي و غیردولتـي تنظیمونـه، دسـوداکرۍټولنې، رفـاهي تنظیمونـه، مخوراشـخاص، پـرمختللي سـازمانونه، پوهنتونونه اوعامه ټـولنې ټـولې راځـي» بلنه ورکوو چې هغـوی دي د«سـمت پـه دوران کې» په وړاندې کیدونکو افکـارو کې ونډه واخلي او همـدي پـه راتلونکـو مصرـوفیتونو اوبحثونـوکې خپلـه برخـه ډیره کړي

۹ـــــ مـوږ دکوالالامپـور سـمت داهدافو، او موخو دپوره کولو ژمنه کـوو او دامت داوسني او راتلونکو نسل لپـاره داسلامي تهـذیب داحیـا عـزم مـوږ سره ګډ او متحدساتي

نـو امیـد دی چـې دغـه ارزوګـانې اوهیلې داسلامي نړۍ په حق کې دعمـل بڼه ومومي اوهوډلرونکو تـه یـې دبـري دعاکوو څو اسلامي نړۍ او په تیـره عـام مسلمانان دموجوده مظلومانه حالـت نـه وباسي او ورته په یوې خوشـاله، سوکاله اوپرمختللي اسلامي نړۍ کې دژوندکولو شرایط او چاپیریال رامنځته کړي پای

***

# ځوانه!

لیکوال: م. حیات الله زاهد

ته یو کس، تن او فرد نه یې! بلکې ته د راتلونکي نسل لپاره یو فکر یو خوځښت او د ښېرازۍ او کامیابۍ یو سمبول یې!

باید ځان وپېژنې، خپل مسؤولیت درک کړې، خپل قېمتي او با ارزښته ژوند په بې ارزښته ځېزونو، کړنو او بوختیاوو ونه سوځوې.

ته د سالمې ټولنې د ملا تر تیر کم نه یې، ستا همدا ارزښت او قېمت غرب درک کړی؛ چې شپه او ورځ یې ستا د بې لارۍ لپاره یـوه کـړې ده، او په هر ډګر کې یې ستا څخه د مسئولیت د هېرولو او په بې ارزښته شیانو بوختولو هره کېدونکې هڅه کړې او کوي یې.

نو ځیر او بیداره اوسه، چې خپل فولادي عزم، غرنۍ حوصله او سپېڅلی ژوند په شعوري یا غیر شعوري توګه د غرب په چوپړ کې تېر نه کړې.

بلکې خپل فکر، نظر، لوړ همت، ځراکت، دانایي او هوښیاري د امت مسلمه د ښه راتلونکي په پار او د ښېرازۍ پـه موخـه مصـرف کـړه، او پـه دې تکل اوسه چې یو ستاسو کړنه هم د ټولنې، جامعې او امت مسلمه راتلونکی روښانه کولی او ځلولی شي.

همت مردان مدد خدا. په ټولنه کې د یوه سالم فکر لرونکي په مټ نسلونه د فیروزۍ په لار او مسیر سوق کېدلی شي.

#ځوان نسل د ښې راتلونکي ضامن دی.     #ځوان نسل مو د فکري غلو نه وژغورئ!




# خبر او تبصره...!!

م خ

۱-پژواک: په تېرو دریو کلونو کې هر کال د ننگرهار نیمایي بودجه بېرته مرکز ته لېږدول شوي.

=تبصره :نو د فساد او بي کفایتي پر ضد چټکه مبارزه خو همدې ته وایی کنه .

۲-دفاع وزارت :تر اوربند پورې به طالبان په نښه کوو.

=تبصره :طالب وایی، که الله ته تائب نسي- تراوربند وروسته به هم د کابل عسکر په نښه کوم .

۳- ولسمشرغني : پولیس د هېڅ افغان د وژلو حق نه لري؛ د قوې کارول باید سنجیده وي.

=تبصره :د قوې سنجیده کارول، مطلب هر افغان چې وژنئ ټوله کورنۍ یې وژنئ او پام چې جونگړې یې هم درنه سلامتې پاتې نسي هغه ورسره په بارودو الوزوي !

٤- غني : د مشرانو جرگې غړي دې د وړو مسایلو پرځای پر لویو مسایلو تمرکز وکړي.

=تبصره : یوه لویه مسئله خو دافغانستان اشغال ده هغه خو همدغې لاسپوڅي جرگې اواره کړي ،چې ترڅو دامریکایانو خوښه وي دلته دې افغانان وژني اوسرې سترگي دې گرزي !!

۵-مدنی فعالان :د کندهار معارف له کلتوري، اخلاقي او مالي یرغل سره مخ دی"

=تبصره :البته دا یرغلونه ټول د مدني فعالانو له برکته دي.

٦-عبدالله عبدالله سکاټ مېلر ته د دوو امریکایي سرتېرو د وژل کېدو تسلیت ویل.

=تبصره :آفرین، د نر بچیه !دغه ستاسو د تسلیت برکت دی چې امریکایان نه وځي .

۷-حامد کرزي لندن کی د نوازشریف د روغتیا پوښتنه وکړه.

=تبصره :کرزی لکه چې لندن کې دملاقات له قحط سره مخ و څوک نه ور پیدا کیدل او بل ممکن مریض یی کوت چې څومره رښتیا مریض دی که نه.

۸-مُحب : دمذاکراتو ترڅنگ د جمهوریت ساتل او د خلکو خوندیتوب مو هم لومړیتوبونه دي.

=تبصره :اوس که رازی وختونه تیر دی---

دجمهوریت ستني کړي ولاړي دینه

۹- دانش :څوک چې هېواد اشغال گڼئ موږ یې د طالبانو په ډله کې شریک گڼوو.

=تبصره :طالب وایی څوک چې هیواد اشغال نه گڼي، موږ یې د ارگ په گوډاگی ډله کې شریک گڼو.

۱۰-واشنگتن پوست :د افغان پوځ په لیکو کې، زیاتره نشه یان او د تیلوغله دي.

=تبصره :مادې لونگي په سرلیدله

زه دې له پکه سره کله خبره ومه

۱۱ -اشرف غني :له تروریزم سره مبارزه پڅه روانه ده.

=تبصره : داشرف له شور ماشوره معلومېږي

چې ډیرژر به مسافر د هندوستان شي.

۱۲ -سرخط :غوره ده چې طالبان لومړی له ملکي وگړو سره سوله وکړي.

=تبصره :نه خیر، ملکي وگړي او طالبان یو دي، سوله طالبان له امریکا سره کوي، بد تاسي گوډاگیان یاست چې طالب درسره د سولي هیڅ اراده نلري .چې له آریانا چوکه.

۱۳-حکمتیار :طالبان د اشغال پرضد جگړه کوي، نباید ترهگر ورته وویل شي.

=تبصره :چې ځي ځي اوبازو له به رازي.

١٤-پژواک اژانس :د سمنگان د خرم سارباغ لپاره د طالبانو د پوهنې مسوول ونیول شو.

=تبصره :ښه، پژواکه !د پوهنې مسئول ته هم تاسي د دښمن په سترگه گورئ.؟ شرم وکه.

۱۵-مُحب :د ناکامورا قاتلین به ډېر ژر ونیول شي .

=تبصره: ښه، دروغجنه !ودي نه ویل چې قاتلین یې د ملي امنیت په کوم ریاست کي دېره دي؟

-۱۶ازادی راډیو :جاپانی ډاکټر تتسو ناکامورا چا وواژه؟

=تبصره : د کابل د شل سري حکومت لنډغرو.

- ۱۷ننگرهار امنیت شورا :زمونږ څېړنیز راپورښیی چې په اچین کې دبمونو دمور له امله هیڅ ډول روغتیایی ستونزي ندي رامخي ته شوي.

=تبصره :خلکو !د ننگرهار د امنیت شورا خبره مه منئ، هغوی مجبور دي، بیا امریکایان ډالر نه ورکوي .حقیقت دا دی، د ولس خلک یې د سر په سترگو ویني، ډاکټرانو ورته ویلي چې د بمونو مور ډېر بد اغیز کړي اثرات یې څرگند شوي.

پای!.......



عابد

# هم دې مړ او هم دې پړ يې !

رښتيا هم چې وخت هرڅه رابرسېره کوي او کوږ بار ترمنزل نه رسيږي، که دبادرکه، بااحساسه او تجربه لرونکوخلکو څوک ونه مني، نو وخت بيا ډېر منکرين او غوليدلي د واقعيتونو په منلو مجبوروي، له فاکس نيوز سره دامريکايي ولسمشر "ټرمپ" څرگندونې چې دعراق دغوښتنې په ځواب کې يې کړې وې، ډېرې په ځای! خو هيښوونکې په دې وې چې څنگه يې صبر ونه شو اوداشغال راز يې افشاکړ، هغوی چې دعراق په اشغال کې مخلصانه منډې ترړې وهلې، دعراق دواقعي مخلصينو او محبينو دا وصيت به يې چېرته هم زړه ته نه لوېده چې دا راغلوني زمونږ له غمه مړه نه دي، دوی اشغالگر او زمونږ دهيواد د منافعو لوټونکي دي ؛ خو اوس به يې زړه منلې وي او دا واقعيت به ورته څرگند شوی وي .

دروانې جنورۍ مياشتې په ۴ نېټه دفاکس نيوز خبريال دامريکا له ولسمشر سره دعراق دپارلمان تصويب شوې پرېکړه راپورته کړه چې په غوڅ اکثريت سره يې له عراق څخه دامريکايي عسکرو وتل غوښتي وو، په ځواب کې ولسمشر "ټرمپ" وويل : داپرېکړه مونږ ته دمنلو نه ده، عراق دې لومړی په عراق کې زمونږ شوي لگښتونه مونږ ته اداکړي، بيا دې دا جرئت کوي ... .

که څه هم چې دعراق دولسمشر وياند داغوښتنه يو وار بياهم تکرار کړه او ويې ويل چې مونږ له امريکايانو سره هيڅ دا ډول تړون نه لرو چې دامريکا عسکر دې دلته دايمي پاته شي، خو سمدستي يې په ځواب کې دامريکادبهرنيو چارو وزارت غبرگون وښود اوله عراق څخه يې دخپلو قواوو وتل ردکړل .

له عراقه دامريکايي قواوو د وتلو سبب به يادقاسم سليماني مرگ وي او يابه هم دعراق خپل کړکيچن حالت اوناامنه وضعيت دې حد ته رسيدلی وي، چې دامريکايانو په لاس جوړ امريکايي پلوه پارلمان دېته مجبوريږي چې بالاخره دا ډول غوښتنه په يوه خوله راپورته کوي، خو دعبرت ټکی پکې دادی چې امريکايان ظبيا بېرته همدغه امريکاپلو و ته څه ډول ځواب ورکوي اوڅومره پروا يې ساتي !!

زمونږ امريکايي پلوه او امريکازېږولي افغاني مستخدمين څه فکر کوي چې هغوی امريکايانو ته کوم حيثيت لري اوپه کومو لاملونوهغوی ته د عراق له لاسپوڅو ډېر معتبر دي چې له دوی سره دې دا ډول چلن ونه کړي او د دوی به مني، ايا د دوی کومه غوښتنه به دهغوی په وړاندې څه قدر ولري ؟؟ هيڅ يې نه لري او ډېرو خو يې لا له مخکې دخپل خدمت بدله دپيپسي بوتل بللې چې خپل کار يې ورڅخه واخيست اونور يې په ډگر پرېښودل .

اشغالګر تل همداسې وي او په هرځای کې همدغه ډول عمل کوي، د یویشتم قرن لا یوڅه په دې هوښیار دي چې هم به دې وژني اوخاوره به دې لوټي او هم به ستا په وژلو کې دخیل کړاو او زحمت بدله او لګښت هم درڅخه غواړي .

زمونږ افغان لاسپوڅو ته روان مذاکرات او دامریکایانو داخراج دترون هڅې یو ډېرښه چانس دی چې دعراق دلاسپوڅو سپور ځواب او شرمېدلی انجام یې په برخه نه شي، اوس خو دوی ته ورځ تربلې دخپلو ناسمو کړنو او جرمونو حقیقت څرګندیږي او دحق په وړاندې دخپلو کړنو بطلان په سترګوویني نه باید چې په لوی لاس دغه شته موقع له لاسه ورکړي .

امریکایان به ووځي اوپه هیوادکې به سوله او امن راشي ان شاءالله ، خو دهغوی په وجود او وېستوکې به هم دهرچاخپله برخه کړنه او هڅه معلومه وي، ډېر به سرلوړي او ډېر به که نور نه وي خپل ضمیر ته ډېر سرټیټي وي .

دهغوی له وتو وروسته به یواځې دا ویل آسانه او یوه جمله وي چې امریکایانو زمونږ خاوره اشغال کړې وه او ووتل، خو زمونږ ولس او خاورې چې د دوی له لاسه کوم څه ولیدل دهغو دردونو، کړاوونو او ډول ډول زیانونو احساس یواځې دویښ ضمیر څښتنان کولای شي .

که مونږ افغانان دغو سپین سترګو امریکایانو ته یوه خوله او یو لاس شوي وای، په ډېر جرئت به مو اوس له دوی څخه دجګړې زیان او خپلو ټولو مړو پوښتنه کړې وه، خو دریغه! چې اوس یواځې د دوی وتل راته بریا ده او هسې نه چې زمونږ په وژلو له مونږ څخه هم لګښت ونه غواړي چې هم دې مړ او هم دې پړ یې !!



# د غربي تحقیقاتو متاثرین!

لیکنه: معصومه "ساپی"

ځیني کسان د غربي تحقیقاتو سره د تطبیق په خاطر غواړي نصوص ورته هغه ډول تعبیر کړي لکه د غربي درواغجنې پروپاګندې تحقیق غوښتنه چې ده، نتیجه یې د وخت ضیاع، د ایمان خطر او سبا پښیماني ده، ځکه غربي نظریاتي تحقیقات تر ډېره پروژیي او سیاسي هدفونه لري او د سیاست د تبدیلۍ سره تحقیق اړوي او بیا بل تحقیق جاري کوي، وای نوی تحقیق دا وایي. ددې مثالونه ډیر دي حتي د مځکې په کیندلو کې یې داسې شیان پیدا کړي دي چې د دوی مفکوره ثابته کړي، وروسته معلومه شوې ده چې هغه دوی خپله ښخ کړي وه چې بیا خپل هغه پروژیي مفکوره په ثابتول غواړي، او بل د خوراکي توکو ګټې او تاوانونه دا ټول د خاصو اهدافو د پاره او د خاص وخت د پاره تحقیقات جاري کیږي.

که په انترنیت کې وکتل شي د بعضو شیانو متضاد نفع ونقصان باندې څېړنې وي دا د څېړنې د حقایقو نتیجه نه وي بل کې د وخت او د هغه تمویلونکي د هغه وخت د غوښتنو تقاضا وي بل وخت بیا چې کله همدغه شی د بل چا سره وي بیا بل تحقیق د ښه او بد جاري کوي، د دواوو سخه نیولې تر خوراکي او د ژوند د استعمال پر ټولو شیانو دا څېړنې حاوي دي.

زمونږ لویه نیمګړتیا دا ده چې داسې لابراتوارونه نه لرو چې څېړنه د ضرورت او پروژې څخه را جلا کړي او خالص پر یو علمي نظر باندې د یو شي څېړنه وشي او خپلې علمي څېړنې د یو اسلامي وجدان او د مسلمانانو سره د ښېګنې بر اساس وشي نه د غربي شرکتو د جوړو شوو میتودو پر اساس، چې سمتي او سیاسي رنګونه لري.

که کوم مسلمان دا تحقیق کوي یا خو صرف په نامه یعني نوم یې د مسلمان وي او یا عملا اسلامي احکامو ته پابند وي خو د تحقیق پر وخت په پټو سترګو د غرب هر څه تطبیقوي او ورته د ثقه په سترګه ګوري، نتیجه دده او د غربي یو ډول وي ځکه چې دی یې هم هغه ډول رغوي چې یو غربي یې رغوي، پکار ده چې د لویدیځ هر مصنوع ترعلمي لابراتوار تیر شي تر څو ګټه او زیان یې د شرکت د ګټې او زیان پر بنیاد نه بلکې پر یوه علمي بنیاد معلوم شي.

# ليبيا کې د ترکې نظامي حضور

# او دعربو اندېښنې



حسن مومند

دشمالي افريقا مهم عرب اسلامي هېواد ليبيايوځل بيا په نړيواله سطحه دخبرونو دسرټکې ګرځېدلی دی.

په ۲۰۱۱م کال کې چې دمعمرقذافي دولت دامريکا اوناټو ديرغل په نتيجه کې ړنګ شو له هماغه وخت راهيسې په ليبيا کې کورنی جنګ پيل شوی او د اهېواد داور په لمبو کې سوزي؛ دا هېوادچې پکې په تمامه معنی امنيت تامين و اودسيمې په سطحه يوسوکاله هېواد و اوس پکې حده زياته بدامني، ګډوډي، دربدري، فقر انارشيزم، طوائف الملوکې اونورې بدبختياني دي؛ په مختلفو نومونو او دمختلفو اهدافو لپاره په سونو ډلې رامنځته شوې اويو دبل پرضد جنګېږي خو اوس په لويه سطحه دوه اړخونه يودبل په مقابل کې ولاړدي اوپه نړۍ کې همدا دواړه اړخونه يادېږي.. يودملي مرکزي ادارې په نوم دفائزالسراج په مشرۍ کې دولت دی چې د ملګروملتونو ادرې اونړۍ له لورې په رسميت پېژندل شوې اودترکې دملت زياته برخه ورپسې ولاړه ده. اوبل اړخ ته د باغي جنرال خليفه حفترپه مشرۍ کې ستره وسلواله ډله ده.

دجنرال حفترملېشې چې ځان ملي فوځ يادوي مصر، فرانسه، امارات اوسعودي، اردن او روسيه يې ملاتړ کوي دهېواد ځوښارونه ددې ډلې په قبضه کې دي او د درندو وسلو ترځنګ جنګي طيارې او چورلکې هم په لاس کې لري چې په دا وروستيو ورځوکې يې يوبمبار کې ددولت ۲۸ تنه عسکر وژلي وو.

دجنرال حفتر له لورې پرپلازمېنې طرابلس داحتمالي بريد دمخنيوي په موخه د ترکې ايټاليا، برتانيې، امريکا او ګاونډي هېواد الجزاير نه د مرستې غوښتنه وکړه او ويې ويل چې دجنګ سترې بتې، ته دې دليبيا ولس د ورغورځول کېدونه وژغورل شي.

خو دليبيا پرغوښتنې له ترکې پرته يو هېواد هم غوږ ونه ګراوه.

دتېرې دسمبر مياشت په ۲۶ مې نېټې دليبيا دکورنيو چارو وزير فتحی باشاغا مطبوعاتي کانفرانس ته په خپلې وينا کې وويل چې دباغي جنرال خليفه حفتردملېشو دسرکوبولو په موخه دليبيا مرکزي دولت له ترکې نه فوځي مرستې غوښتي دي بل لور ته دترکې ولسمشر طيب اردګان هم په همدې نېټې دخپلوځرګندونو په ترځ کې وويل چې دترکې دولت ليبيا ته دفوځي مرستو په ورکولو غور پيل کړيدی.

دليبيا دولت په يادې نېټې دترکې نه ځمکنۍ سمندري اوهوايي درې واړه مرستې غوښتي وې اوپه همدې نېټې ددواړو هېوادونو ترمنځ دفاعي تړون هم عملي شو.

د دسمبر په ۲۷ مې نېټې دليبيا دملي مرکزي دولت مشر فائز السراج دطيب اردګان سره وليدل او بيا خبر خپور شو چې د دواړو هېوادونو ترمنځ دوه تړونونه رامنځته شول؛ يودفاعي تړون و اوبل په بحر ابيض متوسط کې ددواړو هېوادونو دسمندري حدودو دټعين تړون و.

ددې تړونونو درامنځته کېدو په سبا يانې د دسمبر په ۲۸ مې نېټې دليبيا ددفاع اوکورنيوچارو وزارتونو دترکې نه دنظامي مرستې قانونوني غوښتنه وکړه اوترکې هم دځمکنيو، سمندري اوهوايي درې واړو مرستو ورکولو ته چمتو والی ښکاره کړ.

لیبیا ته دترکي ځواکونو دلېږلو پرېکړه څو ورځې دمخه دترکې پارلمان تصویب کړه اولیبیا ته عملاً دترکې دفوځونو راتلل پیل شول.

ددواړو هېوادونو ترمنځ په رامنځته شویو دې تړونونو دعربي نړۍ زیاتروهېوادونو خپل خفګان ښکاره کړ او په ځانګړي ډول مصر اودعربو متحده اماراتو پرې تنقید وکړ او دا یې دسیمې امنیت ته ګواښ وګڼلو.

بل لورته یونان، قبرص او اسرائیلو هم پدې تړونونو اعتراضونه وکړل. دیادوهېوادونو په فکر دلیبیا سره ددې تړون درامنځته کېدو نه پس به ترکیه په بحیره روم کې دتېلو اوغازو دلټون هڅې پیل کړي چې ورسره به ددې هېوادونو ګټوته ګواښونه متوجې شي.

مصر وایې چې دلیبیاسره دترکې دسمندري پولو دلګېدلو له امله به ددواړو هېوادونوترمنځ تګ راتګ اسان او فوځي تعاون ډېر قوي وي چې دابه دسیمې هېوادونو لپاره ښه زېرې نه وي.

ترکې په ۲۰۱۳م کال کې دمصر دمنتخب ولسمشر محمد مرسي پرضد د فوځي کودتا سره خپل سخت مخالفت ښکاره کړی و چې له هماغې راهیسې د دواړو هېوادونو ترمنځ دیپلوماتیکه ترینګلتیا شتون لري.

لیبیا ته دترکې ځواکونو دلېږلو پرېکړه دجنرال حفتر او دامریکا دولسمشر ټرمپ له غبرګون سره هم مخامخ شویده؛ ټرمپ ویلي دي چې دې سره به په سیمه کې تاو تریخوالی زیات شي.

حفتر طیب توندروه دیکتاتور وګڼلواو ویې ویل چې هغه دعثماني خلافت بیا راژوندي کول غواړي.

اردګان ویلي که دحفتر ملېشې په طرابلس برید وکړي نو نه هېرېدونکی درس به ورکړي.

دلیبیا اوسنۍ اداره چې په ملي مرکزي اداري یادېږي دډېروګډوډیو نه پس دملګروملتونو د اداري ترنظارت لاندې په ۲۰۱۷م کال کې دمراکش په صخیرات ښار کې د مختلفو ډلو ترمنځ دمذاکراتو په نتیجه کې رامنځته او فائز السراج یې مشرشو نوځکه اوس همدا دلیبیا قانوني دولت ګڼل کېږي اودلیبیا ولس ورپسې ولاړ دی خوسره له دې هم مصر، دعربو متحده ایالات، اردن، سعودي عربستان، فرانسه او روسیه ددې اداري نه بلکې دباغي جنرال حمایت کوي او همدا هېوادونه دي چې دترکې اولیبیا ترمنځ په رامنځته شویو دواړو تړونونو اعتراضونه لري.

خوترکیه وایې چې ترکیه یو ازاد او خپلواک هېواد دی اولیبیا هم د قانوني دولت نه برخمن یو ازاد هېواد دی نولیبیا چې کوم هېواد سره تړون وغواړي څوک پرې داعتراض حق نه لري؛ ترکې په لیبیا کې دفعال کومې نظامي ډلې یا تروریست تنظیم سره تړون ندی کړی بلکې دهغه دولت سره یې تړون کړیدی چې کومه دملګروملتونو اداري ترنظارت لاندې رامنځته شوې او دې اداري په رسمیت پېژندلې ده

ترکې پدې هکله دلیبیا دځینو ګاونډیو هېوادونوراضي کولو اواعتمادکې داخستلوهڅې هم پیل کړیدي؛ په همدې لړ کې طیب اردګان د دسمبرپه ۲۵مې نېټې تیونس ته سفروکړ چې دتیونس دنوي منتخب ولسمشر قیس سعید سره یې دقرتاج قصرکې اوږده ناسته وکړه اوهغه ته یې دلیبیاسره دترکې دروابطو اوتړونونو په اړه اطمینان ورکړ.

دتیونس نوی ولسمشر هم دطیب اردګان په څېر دمصر په دیکتاتور السیسي انتقادونه کوي اوپه غزه کې دمحصورو مسلمانانو سره خواخوږي ښکاره کوي چې له امله یې دمصر اود مصر داتحادي هېوادونوسره دتیونس د دیپلوماتیکو اړیکو دخرابېدو خطر زیات شوی؛ دطیب اردګان ګرم استقبال هم مصر اونور خلیجي هېوادونه ورخطا کړیدي او وایې چې ترکیه په ډېرې تېزۍ دشمالي افریقا ددې مهم هېوادسره په روابطو ښه کولو دخپل نفوذ دزیاتوالي پرلورګامونه پورته کوي.

سعودي عربستان، مصر او دعربو متحده ایالات دلته دترکې دقدم اېښودلو سخت مخالف دي اودا دعربانو دنیشنلزم په مقابل کې د عثماني خلافت د بیا احیا دهڅو په معنی تعبیروي. دعربو دې عکس العمل ته پام سره داسې ښکاري چې داخبره دعربو په تنظیم عرب لیګ کې هم په نېږدې راتلونکي کې راپورته کړای شي ځکه چې دتېر ۲۰۱۹م کال په اکتوبر میاشت کې په شام کې دترکې دفوځي عملیاتو سره عربو هېوادونو خپل مخالفت ښکاره کړی و او مصر داخبره په عرب لیګ کې راپورته کړی هم وه.

دیادولو وړ ده چې روسیه هم لیبیا ته د ترکې دفوځونو دلېږلو مخالفه ده او دترکې په علم کې ده چې روسیه دباغي جنرال خلیفه حفترسره مرستې کوي خودا چې ترکیه او روسیه دیوبل سره ښې اړیکې لري او دا اړیکې یوهم خرابول نه غواړي نو تمه کېږي چې ترکیه به له ځان سره دروسې په همغږۍ کولو

وتوانېږي چې دليبيا داور بند لپاره په مسكوكې دغونډې جوړېدل ددې خبرې يو ښه ثبوت دی.

دمحترمو لوستوالو په علم كې به وي چې دتركې اوروسې په هڅو دليبيا دملي مركزي دولت مشرفيض السراج اوجنرال حفتر داوربند لپاره مسكو ته ورغوښتل شوي او دواړو لوريو په اوربند هوكړه هم كړې وه خو وروسته بيا يوازې السراج په پرېكړه ليك لاسليك وكړ او حفتر له لاسليك كولو پرته مسكو ترک كړ؛ طيب اردگان وويل حفتر وتښتېد.

څو ورځې دمخه چې دماليزيا په پلازمېنې كولالمپوركې داسلامي هېوادونو يوكانفرانس رامنځته شو د امريكااونورلويديځ ترڅنگ يې سعودي عربستان، مصر، دعربو متحده اماراتو، اردن او ځيني نورعرب هېوادونه هم اندېښمن كړي وو او ويل يې چې داكانفرانس داسلامي كانفرانس حيثيت ترپوښتنې لاندې راولي او اسلامي نړۍ تقسيموي.

خود كانفرانفرانس دختمېدو پرمهال دكوربه هېواد مشر مهاتير محمد دافكر رد كړ او ويې ويل چې دا كانفرانس دكوم بل كانفرانفس په مقابل كې ندی جوړشوی بلكې دايوازې داسلامي نړۍ دهېوادونو تر منځ دخپلمنځي تړاو او مرستې يوه نوې هڅه ده.

شنونكي وايې چې دخطر ځای ماليزيا نده؛ دماليزيا سره خو ټول عرب اوخصوصا سعودي عربستان ډېرې ښې اړيكې لري اصل خبره په تركې، ايران اوقطر كې وه؛ پدې كانفرانس كې اصل رول دتركې د ولمشر طيب اردگان، دايران ولسمشر حسن روحاني، دقطر اميرشيخ تميم بن احمد آل ثاني و؛ دادهغه هېوادونومشران دي چې ځانونه دازادې خارجه پاليسۍ غوښتونكي بولي او دامريكا دظلم پر وړاندې منظم جدوجهد غواړي.

بيا پدې درې واړو كې تركيه هغه هېواد دی چې سعودي عربستان اونورعرب هېوادونه يې دځان لپاره دخطرلويه ننبه گڼي.

غرب عربان وېروي چې گڼې تركې له ۳ طرفونو نه عربې نړۍ ترخپلې محاصرې لاندې راوستې ده؛ د افريقا الجزاير؛ منځنۍ جمهوري افريقا، چاډ، نايجيريا اوسوډان سره د تركې ديپلوماتيک روابط ډېر ښه دي او داهېوادونه يې ځان ته ډېر رانېږدې كړيدي.

سوريې اوعراق باندې مشتمله دمنځني ختيځ په الهلال الخصيب نومي تړانگې كې دتركې دفوځونو شتون او پكې يوشمېر فوځي عمليات دلته دتركې دنفوذ ننبه گڼل كېږي.

اودليبيا سره دتړون له مخې دې هېوادته دفوځونو دلېږلو پرېكړې خوعربان لاپسې ورخطاكړل اوځانونه يې رښتيا دتركې په محاصره كې وگڼل.

عربان فكر كوي چې تركيه دعثماني خلافت بيا ژوندي كول غواړي چې دا كاردوئ دعربو دنيشنلستۍ د نابودولو په معنی تعبيروي.

بل لورته اسلام دښمن لويديځ هېوادونه هم دخپلو رسنيو له لارې داسې تبليغات كوي چې تركيه دعثماني خلافت دبيا احيا لپاره گامونه پورته كوي او له دې لارې تركيه بيا دعربانوسيمې ترخپلې قبضې لاندې راوستل غواړي.

سره له دې چې تركې تېز پرمختگ اوپكې داسلام خوښو قوت دلويديځ لپاره دمنلو وړ ندی نولويديځ اوپه ځانگړې ډول امريكا هڅې كوي چې تركيه په كورني اوبهرنو جنگونو كې راښكېل كړي .

چې تركيه هم دلويديځ ددې ارادونه خبره ده نو ځكه په ډېر احتياط قدمونه پورته كوي داحتياط ترڅنگ دلويديځ په مقابل كې دجرأت نه كار اخلي اودكولالمپور دكانفرانس او ليبيا سره دتړونونو درامنځته كولو اوبيا ورته دفوځونو دلېږلوپه پرېكړو دنړۍ سترو زبر ځواكونو ته دا پېغام وركوي چې داسلامي نړۍ په اړه ددوئ روانه پاليسي سخته ناكامه او دداسې نفرت وړ ده چې ولسونه خو ولسونه دي نور يې په اړه دولتونه هم چپ پاتې كېدای او لاس ترزنې كېناستای نه شي.

چې دكولالمپور كانفرانس كې طيب اردگان ښه په جهر ددې خبرې اظهار هم وكړغونډې ته په ويناكې هغه دملگرو ملتونو دامنيت شورى په اړه وويل چې دامنيت شورى ټوله نړۍ دپنځو هېوادونو غلامۍ ته سوق كړې چې همدا كار په نړۍ كې دټولو ستونزو اصل لامل دی.




# په ۲۰۱۹ م کال کې
# په افغانانو څه تېر شول؟

لیکوال : مصلح افغان

په افغانستان د امریکا او نوروکفري هېوادونو له یرغل نــه مخکــې ځینــو افغانــانو امریکایــان او نــور غربیــان د بشردوســتانو ، هوښــیارو ، باتعلیمــه ، خواخــوږو انسانانو پــه نوم پېژندل. هغوی هم د خپلو هغو وسائلو په مټ چې پــه لاس کې یې لرل د خپل ځان په ګټــه د نــړۍ پــه ګــوټ ګــوټ کې پوره تبلیغات کړي وه.

حتی چې ځین افغانان هغو هېوادوالو ته هم په احترام قائل وه چې په کفري هېوادونــو کې اوسېدل او هلتــه یې زده کــړې کــولې لــه هغــوی یــې دا هیلــې هــم لرلــې چې کــه چېرې دا خلک د هېواد حکمرانان شي کېدایشي له انګریزانو نــه یــې لــه خپــل هېــواد او هېوادوالــو سره مینــه د هېــواد د پرمختګ او آبادۍ جزبه زده کړي وي . او له برکته یې خپل هېواد ته له دې ناخوالو او مصبتونو څخه نجات ورکړي.

داچې عــامو مسـلمانانو تــه د کــافرانو او د هغــوی د دسیســو او اهــدافو پــه هکلــه دومــره معلومــات نشته ځکــه دوی له قراني ارشاداتو څخــه لــرې پاتې شــوي لــه همــدې امله دوی د مــډیا لــه تبلیغــاتو څخــه ژرمتــأثره کېږي او پــه کافرانو نیک ګمان کوي .

دوی تــه کــه څــه هــم د علــماوو لــه لــوري د کــافرانو شرارتونــه ، لــه اسلام او اسلامي امــت سره ، دښــمني ،کبر ، غرور او داسې نــور نــاوړه صفات باربــار بیــان کــړې وه خــو دې خبرو ته دوی د سیاسي مخالفت رنګ ورکاوه .

کله چې په ۲۰۰۱ م کال کې د امریکایانو او نــورو غــربي او کفــري هېوادنــو لــه لــوري پــه افغانســتان یرغــل وشــو او هغــوی لــه ځــان سره هماغــه خلک راوســتل کــوم چــې دوی هلته روزلي وه او هماالته یې وخت تېر کړی وه.

نــو دغــو افغانــانو دا ګــمان کــاوه چــې نــور مــو د هېلــو غــوټۍ پــه ګــل کېــدو دي هېــواد بــه مــو د تعلیم ، اقتصــاد ، سیاست، آبــادۍ او پرمختــګ پــه ډګــر کــې لــه سیالانو سره سیال شي، ځکــه د نــړۍ بشرــ دوســتان او د هغــوی پّــه لاس روزل شوي افغانان زمونږ د هېواد حاکمان شول.

خو د وخت په تېریدو ورځ تــر بلــې د دې خلکــو چهــره افغانــانو تــه بربنډېدلــه . پــه افغانــانو کــې یــې د بــې دینــۍ، عیاشــۍ ، ډمتــوب او داســې نــورو... غیــر شرعــي او اســلامي کړنــو د تــرویج هڅــې پیــل کــړې . علــماوو او د دې هېــواد اصیلو بچیانو هم د دې افغانــانو د دې بــې ځایــه امیــدونو د کاذب تحقق لپاره یو څه وخت انت ظار وکړ.

خــو قیصــه ورځ تــر بلــې د خرابیــدو پــه لــور روانــه وه هماغه وه چې د افغانستان ټول ملت په یــوه آواز د وطــن د اصیــلو بچیــانو (طالبــانو) داعیــې( د اشــغالګرو کــافرانو پــه وړاندې د مقدس جهاد د پیل کولــو ) تــه لبیــک ووایــه او پــه پراخه کچه یې ورڅخه خپل ملاتړ اعلان کړ .

خپل تنکي بچیان یې د کفري اشغالګرو پــه وړانــدې د جهاد مرکزونو ته ولېږل.

خپل مال دولت او نور جهــادي وســائل یــې مجاهــدنیو ته په اختیار کې ورکړل .



د هر کال په تېریدو سره د اشغالګرو او د هغوی د ملګرو له خوا زمونږ په مظلوم ملت د ستر وحشتونو لړۍ په زیاتېدو وه .

طالبانو په ځو ځو ځله له امریکانو د مسئلې د سولیز حل غوښتنه کړې وه خو د هغوی له خوا په ډېرکبر او غرور سره رد شوې وه .

بالآخره د ۲۰۱۹ م کال په لمړیو کې د امریکانو له خوا د سولې وړاندیز وشو چې طالبانو هم ومانه او د سولې خبرې عملا پیل شوې . چې یو ځل بیا د هېواد د راتلونکي لپاره د عامو افغانانو هیلې او امیدونه راژوندي شول.

خو امریکایانو او د هغوی داخلي لاسپوڅو د سولې د خبرو په جریان کې د افغانانو د هیلو او امیدونو په خلاف په دې مظلوم ملت دومره ستر بشر- ضد وحشتونو تر سره کړل چې قلم یې له لیکلو او ژبه یې له ویلو شرم کوي.

ډمکراتانو افغانانو ته د میډیا او نورو تبلیغاتي وسائلو په مټ ډمکراسي د یو ستر الهي نعمت په توګه وربېژندلی وه. خو دوی په افغانانو د دغه نظام د پلي کولو لپاره د هېڅ ډول وحشت او بربریت څخه دریغ ونه کړ . د بمونو د مور په شمول یې په زرګونه قسمه بمونه په افغانانو ورول.

د دوی له وحشتونو څخه یه یوازې انسانان متضرر نه شول بلکې دوی په قصدي توګه د مسلمانانو په مقدسو اماکنو ( مسجدونو ،مدرسو) او عام المنعة تأسیساتو او د واده او جنازې په مراسمو هم بمباري وکړه . چې په دې عمل سره دوی. نه یوازې له افغانانو بلکې د عامو مسلمانانو له اسلامي ارزښتونو سره د خپلې دښمنۍ ښکارندویي وکړه .

تاریخ به په افغانستان کې ۲۰۱۹ م کال د نړۍ د بشردوستۍ د کاذبو مدعیانو او د هغوی د لاسپوڅو دغه ستر وحشتونه هېڅ کله هم هېر نه کړي او دا به د افغانستان په تاریخ د یو تور باب په توګه ثبت کړي. د دغو وحشتونو په نتیجه کې د دقیقې احصائې مطابق په دې هېواد کې( ۵۴۲۳ ) ملکي او بې ګناه هېوادوال په شهادت رسېدلي( ۳۲۸۴) نور ټپیان شوي (۱۰۲) بابه مسجدونه د دوی له خوا په بمباریو کې ویجاړ شوي( ۱۱) بابه دیني مدرسې (۱۸ بابه مکاتب( ۲۰ )بابه صحي مرکزونه( ۱۶۵۰) د ملکي خلکو کورونه (۱۷۱۹ ) بابه دوکانونه (۸۸۱) عرادې د ملکي خلکو موټر له منځه وړل شوي.

دا د هغو بشردوستانو او په غرب کې دروزل شویو افغانانو په دې ملت د ترحم او خواخوږۍ هغې سوغاتو نه دي چې د خپلې حمکرانۍ په دوران کې افغانانو ته ورکړل.

نور به ان شاء الله چې افغانان هېڅله هم د کافرانو په دروغجنو وعدو دوکه نه شي او نه به د دوی په لاس روزل شویو تش په نامه افغانانو خپل سرنوشت په لاس کې ورکړي .

# طالبان که د پرون

## د دار ارقم څو غریب اصحابان؟

م مبصر

د هرې زمانې خلګ د هغه څه منلو ته غاړه ږدي، کوم چې د زمانې شرائط او أسباب ایجابوي، او د همدغه زمانې د وګړو عقلونه یې منلو ته تیار وي، د نفساني خواهشاتو یې مطابق وي او د دوی ګټو، سرداري، واکمني او شهرت ته ضربه او صدمه نه وي.

کنه نو دوی د خپلې سردارۍ د زیان له وېرې هر د إنسانیت په ګټه ږغ ډېر کول غواړي او د منلو څخه یې وچ کلک انکار کوي، عناداً، جهالةً او د خپلو ګټو په خاطر.

لکن الله جل جلاله هغه څه کوي، کوم چې د الله خوښه وي، د إنسانیت منفعت او ګټه پکې خوندي وي او لازماً هغه څه کېدونکي وي کوم چې الله جل جلاله غواړي، د طاغوت د بندګانو د الهي مشال د خاموشولو هره کړنه به خنثی او بې پایلې وي.

نو بناءً کله چې اللّٰه جل جلاله د تاریکۍ په هغه دور کې، چې د انسانیت د شمعې څرک ورک ؤ، د إنسانیت قدرونه تر خاورو لاندې او روح یې ختلی وو، وغوښتل چې انسانیت او ارزښتونه یې یو ځل بیا د سپېڅلي مشال په توګه وځلېږي او خپل مړ روح یو ځل بیا تازه کړي او د نوي ژوند ساه واخلي.

نو د انسانیت ستر سالار، د مړه انسانیت لپاره مسیحا حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم یې د خپل استازي په توګه مامور کړ او د انسانیت د پاڅولو لپاره یې مبعوث کړ.

خو هغو خلګو (سرداران قریش) چې خپلې سردارۍ او واکمنۍ یې په زیان کې ولیدلې، د منلو څخه یې وچ کلک انکار وکړ او د قسما قسم بهانو تر څنګ یې دا ویل شروع کړل: چې دا یتیم هلک به څنګ دا کار وکړي دا خو باید پر یو غټ او مشهوره سړي را نازل شوی وای.

وَ قَالُوا لَو لَا نُزِّلَ هذَا القُراٰنُ عَلٰی رَجُلٍ مِّنَ القَرِیَتَینِ عَظِیمٍ

ژباړه: او دوی (کفار مکه، سرداران قریش) وویل چې ولې دا قرآن د دا دوو کلو پر یو غټ سړي را نازل نه شو.

نو د دې ځلي د ورکېدو په پار هره کړنه د دوی د غاړې طوق او د پښو ځنځیر جوړ شو، د دوی هر شوم کوښښ خنثیٰ او الهي اراده بشپړه حاکمه او پلې شوه.

او د همدې کاروان په لمسون کې د انسانیت د سپه سالار لاس نیونه چې کله غریبو او بې کوره اصحابانو وکړه نو بیا دوی (کفار مکه، سرداران قریش) دا بابولالې شروع کړې، چې دا خو یو څو غریب خلګ دي، فقیران، مسکینان او هغه څوک چې موږ یې په مجلس کې پرېښودلو ته تیار نه یو، دا به څنګه د دې لوی کار د کولو توان ولري، د داسې لوی کار لپاره خو باید سرداران، د قوم مشران او مخور خلګ ګمارل شوي وای.

نو الله د دغو پوچ مغزو سردارانو طفلانه نظر رد کړ او په ځواب کې یې دا وفرمایل.

وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لِيَقُولُوا أَ هٰؤُلَاءِ مَنَّ اللَّـهُ عَلَيْهِمْ مِنْ بَيْنِنا أَ لَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِالشَّاكِرِينَ﴾ (الأنعام: ٥٣

ژباړه: او همدا رنګه موږ بعض انسانان په بعضو ازمایو چې دوی ووایي آیا پر دغو غریبو باندې الله احسان کړی زموږ په منځ کې، (نو دوی سردارانو او معترضونو ته دې وویل سي چې) ایا الله

خپل شکر گزاره بندګان نه پېژني؟! (نو رسول الله او اصحاب یې شکرګزاره او احسان منونکي وو الله ونازول)

او د همدې کاروان په بهیر کې چې نن الله د سرکښې او طاغوتي امریکا تکبر، لويي او خدايي د يو څو بې وزلو، بې دوست او مددګارو او بې سر وسامانو په لاس بې له کومو دنیاوي اسبابو، ټانګونو او بې پیلوټه الوتکو ماته کړه؛ نو نن هغه دابو جهل او عتبه چچوړي دغه اعزاز د طالب په نامه ثبتېدو ته نه دي تیار او د طالب دا اعزاز دوی نه شي هضمولی، او د خپلو مادي ګټو پر اساس خپل هیڅ نوع شومو کړنو څخه لاس نه په سر کېږي. او د طالب د شخصیت داغداره کولو لپاره د خپلو نیکونو (ابو جهل، عتبه او شیبه وغیره) تګلاره ټکی په ټکی تعقیبوي.

نو نن چې کوم ابوجهل صفته انسانان د سپېڅلې تګلارې څښتن طالب او دده کړنې تر سوال لاندې راولي، او د شخصیت په تورولو کې یې خپله هره هڅه ازمايي نو دا څه نوې او نابلده خبره نه ده.

بلکې دوی د خپل نیکونو تګلاره تعقیبوي او پایلې به یې هم د هغوی په څېر تاریکې او له کړاونو ډکې وي.

او د طالب د سپېڅلولۍ لپاره همهغه د خدای کړې صفائي او ستاینه بسنه کوي، چې دوی د الله شکر ګزاره بندګان دي، دوی د الله شکر ګزاري د خپلو سرونو او تنکۍ ځوانۍ په جوش کې د تنکي وجود په ټوټه کولو سره کوي، او دوی د دار ارقم د غریبو اصحابانو تګلاره او مسیر خپل مشال ګرزولی او پایله به یې هم ان شاء الله د هغوی په څېر ځلانده او ځلېدلې وي.

د ابوجهل چچوړو؛ د سپېڅلې تګلارې څښتن طالب له اولې ورځې نه په هغو تورونو تورن کړ چې آن د دوی خپل نفسونه به یې هم ورسره ونه مني، دوی لېواله وو چې طالب یو وحشي، ځنګلي، متشدد، دهشتګر او د هیڅ اصل نه مراعت کونکی معرفي کړي، خو لله الحمد نن د الله د خوښې او ارادې موافق طالب په نړیواله سطحه د امن سمبول، اسلامي ارزښتونو ته ژمن او د انسانیت ستر شاهکار معرفي شو.

د دوی دا کربوړنې هڅې به دوام لري، خو موږ ډاډه او مطمئن یو/ؤو چې تر څو مو د رښتینې ورورولۍ او اسلامي اخوت رسۍ په لاس کې وي او د هغو بې وزلو او غریبو اصحابو (چې په ابتداء کې د دوی د حق د شمعې د ورکولو لپاره هر کس و ناکس کوښښونه وکړل) تګلاره مو خپله کړې وي نو بری به زموږ سره وي ان شاء الله.

## د طالب د زماني غلا!

یو چا کیسه کوله چې د طالبانو زمانه کې هرات ته لاړم، یو سهار خربوزې والا غالمغال جوړ کړی ؤ، خلک یې په ځان راټول کړي وو، چې دا څنګه حکومت دی بېګا مې له کراچۍ نه چا خربوزه پټه کړې؟! دې کې طالبان راغلل شا او خوا یې کتل چې د خربوزې پوستکي پراته وو، د پوستکو پلاستیک یې چې پورته کړ لاندې یې پیسې پرتې وې. هغه چا چې د شپې خربوزه خوړلې وه پیسې یې ورته ایښې وې.

## هندو سترې خدای ناراضه

همراز ځیرک

د أفغانستان جګړه دوه لوري لري. یو لوری یې طالب دی بل لوری یې أمریکا.

مغرورې أمریکې وطن اشغال کړ، مسلمانان یې در پدره کړل، خو بالآخره په خپل هدف کې ناکام شول، او له طالب سره سولې ته اړ او په زارۍ کولو کې اوس هم بوخت دي.

بل اړخ یې طالب جان دی، چې د ستر طاغوت مغرورې امریکې او د غرب له غلامانو سره په جهاد بوخت دي حتی غاښ ماتونکې ماته یې ورکړه او اوس هم بوخت دي چې خپله پاکه خاوره د پردیو له إشغال څخه پاکه او دوی مختوري کړي، چې الله جل جلاله هم پکې راضي او ولس هم راضي او دنیاوال هم ورته ګوته په غاښ!!

دریم اړخ یې دافغان اجیر حکومت دی چې هیڅ کوم هدف یې معلوم نه دی، پرته د أمریکا له دفاع څخه، چې ځان او وطن یې پکښې خاوري کړل! الله جل جلاله هم ناراضه ولس هم ناراضه.

یو متل دی وایي: (هندو سترې خدای ناراضه)

# آیا هند را هنوزهم می‌توان

# دموکراسی بزرگ نامید؟

■ بشیراحمد انصاری

تعدیل قانون شهروندی هند و فیصلهٔ دیوان عالی آن کشور مبنی بر اعمار معبدی هندویی بر ویرانهٔ مسجد تاریخی بابری واکنش تند سازمان‌های بین المللی و انجمن‌های حقوق انسان را بر انگیخت. چنین معلوم می‌شود که آتش فاشیزم نژادی و افراطی گری مذهبی بالآخره دامن سرزمین تسامح‌پرور هندوستان را نیز گرفت.

امروز هیچ خطری به اندازهٔ فاشیزم قومی و افراطی گری مذهبی انسجام و هم‌زیستی جوامع انسانی را تهدید نمی‌کند؛ اما این خطر، وقتی مضاعف و غیر قابل کنترول می‌شود که آتش فاشیزم را با پترول دین بیامیزند که ما با مصادیق و نمونه‌های فراوان این ازدواج نا میمون از نزدیک آشنایی داشته‌ایم.

چند سال پیش که مودی در پارلمان افغانستان سخنرانی کرد و بیتی از مولانا را خواند، من آن سخنرانی را در آن وقت ستودم، ولی حالا می‌بینم که او نیز از رهروان شیوهٔ طالبانی تعامل با «دیگر» بوده و قرائت بیت مولانا نفاقی بیش نبوده است. آخر چه تفاوتی میان ضعیف‌آزاری ما و اقلیت‌ستیزی آن هندوی نشسته بر اریکهٔ قدرت در دهلی می‌توان یافت.

دانشمندان حوزهٔ علوم سیاسی، نظام سیاسی هند را «دموکراسی بزرگ» می‌نامند، اما چه کنیم که این دموکراسی بزرگ را نیز با گند تبعیض و تعصب آلودند. هند دیگر «دموکراسی بزرگ» نیست و آن‌چه در آن کشور می‌گذرد لکهٔ عاری است بر جبین آن تاریخ شکوهمند. معجون فاشیزم و تعصب دینی که آقای مودی آن را ترکیب نموده «سُندُری» است بر جبین آن هویت که از ازدواج این دو اهریمن تبه‌کار در سرزمین گاندی خبر می‌دهد. در اینجا دو نکته را هم برای رهبران جامعهٔ خود و هم برای مودی و حزب او خاطرنشان می‌سازم:

اول اینکه قدرتِ واکنش‌ها هم در فیزیک و هم در جامعه متناسب با کنش‌ها می‌باشد. در نهم مارچ ۲۰۰۱ زمانی‌که طالبان مجسمهٔ بودا را در بامیان منفجر ساختند، در جوامع شرق و جنوب شرق آسیا مظاهره‌هایی به راه انداخته شد، و هنوز دو ماه از آن بت‌شکنی کودکانه و جهاد کودنانه سپری نشده بود که بودایی‌ها ۱۱ مسجد و ۴۰۰ خانه را در میانمار آتش زدند و دوصد مسلمان را نقش زمین کردند که خون انسان بی‌گناهِ بورمایی تا هنوز به روی خاک آن کشور می‌ریزد، خاکی که آن را باد می‌برد. مودی باید بداند که اگر سیک‌ها یک فیصد اند و می‌توانند درد سر بزرگی برای هند ایجاد کنند، این به اصطلاح «اقلیت» ۲۰۰ ملیونی مسلمان اگر بجنبد، هند را از هستی ساقط خواهد نمود.

نکتهٔ دوم اینکه رهبران بشر- از کنفوسیوس تا محمد بن عبدالله (صلی الله علیه و سلم)، پیوسته اصرار داشته‌اند که آنچه به خود نمی‌پسندی به دیگران نیز مپسند!

سعدی هم گفته بود:

هر بد که به خود نمی‌پسندی
با کس مکن ای برادر من
گر مادر خویش دوست داری
دشنام مده به مادر من






# ګل څونه

## غزل

خانه واورې دې ورېږي ستا پرې څه
کېږدی زما به رانږېږي ستا پرې څه

ته مستي کوه تصوير واوروکې اخله
زمونږ زنې دې لړزېږي ستا پرې څه

خپل بچيان دې په ورېن جاموکې پټ دي
دغريب بچي يخ کيږي ستا پرې څه

يخ موسم کې رنګارنګ خواږه تيارکړې
مونږ ته سپوره نه رسيږي ستا پرې څه

## #پرهیز_ش

### مولانا، غزلیات شمس تبریزی

ای اشک آهسته بریز که غم زیاد است
ای شمع آهسته بسوز که شب دراز است
امروز کسی محرم اسرار کسی نیست
ما تجربه کردیم کسی یار کسی نیست
هر مرد شتر دار اویس قرنی نیست
هر شیشه‌ی گلرنگ عقیق یمنی نیست
هر سنگ و گلی گوهر نایاب نگردد
هر احمد و محمود رسول مدنی نیست
بر مرده دلان پند مده خویش نیازار
زیرا که ابوجهل مسلمان شدنی نیست
با مرد خدا پنجه میفکن چو نمرود
این جسم خلیل است که آتش زدنی نیست
خشنود نشو دشمن اگر کرد محبت
خندیدن جلاد ز شیرین سخنی نیست
جایی که برادر به برادر نکند رحم
بیگانه برای تو برادر شدنی نیست
صد بار اگر دایه به طفل تو دهد شیر
غافل مشو ای دوست که مادر شدنی نیست

## نعت

الحاج محمد امين

زړګيه سترګې لګوه د قدم لاره نه ده
حضرت پرې ايښي قدمونه دومره خواره نه ده

په دې کوڅو کې جبرائيل عليه السلام پښې ابله
له شوقه تللو وروره ستا د پښو د پاره نه ده
چې د حرم په ځمکه ږدې قدم او سترګې نه ږدې
زړه دې زخمي نه دی سينه دې هم بيماره نه ده
دا مخامخ روضه چې ښکاري زرغونه د محبوب
مانۍ د عرش له دې نه لوړه او نامداره نه ده
دغه پنځه مناري لوړې د محبوب د حرم
يوه هم کمه د فردوس له لوړ میناره نه ده
اوس به باب السلام ورشي د محبوب روضې له
د هيڅ عاشق سينه له دې درده قراره نه ده
نور په ادب او شوق حيران شوم د محبوب د روضې
بې د الله نه مې سپارلې دغه چاره نه ده
سلام د محمد امين عرض کړه په حضور د محبوب

ځولۍ خالي راوړې چا له دې درباره نه ده
وروړمو ارمان پښتون په دعاګانو کې ياد ساتی






# غزل

شفاعت ریحان

بندي د چا د زلفو په تناب مه شه، قربان
بې اوره بې لمبو دي زړهٔ کباب مه شه، قربان

د چا د لېونو سترګو تاثیر دي په تا نهٔ شي
چاپېره دي له زړهٔ دغه عذاب مه شه، قربان

له درسه به دي زړهٔ بې اندازې مات شي لالیه!
شهید دي خوږ ملګری د کتاب مه شه، قربان

جانانه! زهٔ د وخت سِتم وهلی وم، له ځمکې
خفه زما د شونډو په ځواب مه شه، قربان

دردونه د بېلتون یې لري غرونه عوضونه
بې برخې څوک د مینې له ثواب مه شه، قربان

د زړهٔ توتې به خپله تورو خاورو لره سپارې
زلمی غېږ کې د سترې انقلاب مه شه، قربان

په دې حالت دي شکر شفاعته! رب ته وایه!
ژوندون دي نور له دې پسې خراب مه شه، قربان

# له ښاپیریو الهام

غزل: ثناءالله معصوم

له مداره څو زلمیو الهام واخیست
په موسکا یې د خوښیو الهام واخیست

راتلې ځکه د زلمي شهید تر غیږې
سپینو حورو له سلګیو الهام واخیست

آن جلاد ، ورسره دار هم اوښکې تویې کړې
یو زلمي چې له رسیو الهام واخیست

چې دعا کوي او ژاړي، مین ښکاری
ما یې ځکه له زاریو الهام واخیست

په رسا ګزار یې ځکه شیطان وویشت
دشهاب یې له سپرغیو الهام واخیست

د رڼا د څرک په تمه یمه ځکه
ماله ستورو تروږمیو الهام واخیست

د غزل په باب یې مه پوښته ملنګه !
معصوم بیا له ښاپیریو الهام واخیست



# دظالم مخه نیول

## او دمظلوم ملګرتیا کول

مفتي محمد ګل سعید

که چیرته مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سیرت مبارک ته ځیر شو نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ژوند کې یوه پیښه چې په تاریخ او د نبي صلی الله علیه وسلم په مبارک سیرت کې د حلف الفضول په نامه یادیږي تېره شوې، چې دا د قریشو تر منځ یو معاهده وه، تر څو د مظلوم ملګرتیا او دظالم مخه ونیول شي، پدې معاهده کې رسول الله صلی الله علیه وسلم هم شریک شوی وو، دا معاهده د عبدالله بن جدعان په کور کې وه. رسول الله صلی الله علیه وسلم به وروسته هم دا خبره کوله چې ما دنبوت نه مخکې هم په هغه معاهده کې شرکت کړی کومه کې چې د مظلوم ملګرتیااودظالم مخنیوی شوی وو. دا معاهده دظالم ظلم، جبر، سرکښۍ اوفساد ته دپای ټکی کیښودل وو، دا ددې لپاره چې هر انسان د انسان دغلامۍ وژغوري، او ورته په ډاګه کړي چې انسان ته الله جل جلاله عزت ورکړی او دا عزت هیڅوک نشي تلف کولای. حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه دخپل خلافت په لمړۍ خطبه کې وفرمایل: الضعیف فیکم قوي عندي حتی أریح علیه حقه إن شاء الله، والقوی فیکم ضعیف حتی آخذ الحق منه إن شاء الله.

ستاسو په نزد کمزوری زما په نزد قوي دی تر څو هغه ته خپل حق ورسي، او ستاسو په نزد قوي زما په نزد کمزوری دی تر څو د هغه نه د بل حق واخلم، ځکه چې یو انسان به ځان ته ډیر زورور وایي خو ظالم به وي د بل حق به خوري، بل انسان کمزوری یا مظلوم وي د خپل حق غوښتنه په نشي کولای، نو فرمایې چې دا به زه کوم انشاءالله.

همدارنګه حضرت علي کرم الله وجهه فرمایي: یو نظام د کفر سره باقي پاتی کیدای شي خو د ظلم سره نشي پاتی کیدای. همدارنګه د عمر بن الخطاب رضي الله عنه د خلافت ډیرې زیاتې واقعې دي کومې چې د ظالم دمخه نیولو او د مظلوم دملاتړ او ملګرتیا کولو په هکله رانقل شوي دي، دبیلګې په توګه:

د فلسطین له فتحې وروسته حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه، حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه ته وویل: چې یاامیرالمومنین! ماته د مصر دفتحې اجازه راکړه، خو عمر رضی الله عنه اجازه ورنکړه.

ددې څه وجه وه؟ آیا عمر څه لیدل؟ آیا عمر رضی الله عنه درومیانو نه ناخبره وو چې هغوئ بیا د جنګ تیاری نیسي؟ آیا عمر رضی الله عنه دفلسطین نه تښتیدونکي رومیان هلته په آرام پریښودل غوښتل؟ که بله کومه وجه هم وه؟

حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه د ډیر پراخ نظر څښتن وو، لید یې تر دومره لرې رسید چې هیچا فکر نه شو کولای، د یوې پیښې ټول اړخونه به یې لیدل او بیا به یې پریکړه کوله.

کله چې رومي لښکرو د فلسطین خاوره پریښوده او مصر ـ ته ولاړل نو هغوئ بیا بیا د جنګ تیاری نیوه، نو عمرو بن العاص رضی الله عنه د فلسطین او داسلامي خاورې د




سالمیت لپاره د عمر رضی اله عنه نه د حملې طلب وکړ، اجازه ورنه کړل شوه، خو کله چې دمصر خلکو په خپله د مسلمانانو نه د حملې کولو طلب وکړ، نو حضرت عمر رضی الله عنه حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه ته اجازه ورکړه، ځکه چې د مصر خلک د رومیانو د ظلم نه په تنګ شوي وو، او حضرت عمر رضی الله عنه هم دا وښوده چې زموږ جنګ د ملکونو د نیولو لپاره نه بلکه انسان د انسان د بنده ګۍ نه ژغورل دي. ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه فرمایي: نحن خرجنا لنخرج العباد من عبادة العباد الی عبادة رب العباد.

دحضرت عمربن خطاب رضی الله عنه په خلافت کې حضرت عمروبن العاص رضی الله عنه د مصر- والي وو، دحضرت عمرو بن العاص زوئ یو عیسوي قبطي وهلی وو، نو هغه قبطي د شکایت لپاره عمري دربار ته حاضر شو او دنوموړي پر خلاف یې حضرت عمر ته شکایت وکړ، امیر المومنین رضی الله عنه سمدستي حضرت عمروبن العاص رضی الله عنه ته ولیکل چې ته او ستا زوئ دواړه مدینې ته حاضر شئ، کله چې هغوئ راغلل نو حضرت عمر رضی الله عنه په قبطي ورغږ کړ چې راشه خپل بدل ورځني واخله نو قبطي خپل بدل د حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه له زوئ څخه واخیست. حضرت عمر رضی الله عنه ورته وویل: چې راشه اوس عمرو هم ووهه، په دې وخت کې په مسجد نبوي کې ټول ناست خلک حیران شول. چا له حضرت عمر رضی الله عنه څخه پوښتنه وکړه چې دې کې دعمرو څه ګناه ده؟ نو امیر المؤمنین ورته وویل: چې دی دمصر والي دی او زوی یې دده دولایت په نامه دا قبطي وهلی دی. حاضرین ټول خاموش شول، خو قبطي ورته وویل: چې یا امیرالمومنین! زه چې چا وهلې وم ماهغه وواهه بس زما دعمرو او بل چا سره هیڅ کار نشته. د عباسیانو په خلافت کې یوه مسلمانه میرمن د رومیانو په زندان کې زنداني شوې وه، هغې میرمنې یو لیک چې یوائې (واه معتصماه) پرې لیکل شوی ؤ د عباسي خلافت دربار ته واستوه. خلیفه چې کله دا لیک ولوست نو د روم امپراطور ته یې یو لیک ولیکه چې: ستاسو په زندان کې یوه مسلمانه میرمن تاسو زنداني کړې په عزت سره یې مونږ ته راولیږئ که نه داسې لښکر به درواستوم چې سر به یې ستا په خاوره او آخر به یې زما سره وي. کله چې دا لیک امپراطور ولوست نو سمدستي یې د میرمنې د زندان نه د راویستولو امر وکړ او د دوه زره عسکرو سره یې د بغداد په لور رهې کړل. په لار کې ورسره د مسلمانانو لښکر مخامخ شو او ورنه یې وغوښتل چې دا ښځه مونږ ته راکړه مونږ به یې امیرالمومنین ته ورسوو، هغوئ په ځواب کې ورته وویل چې مونږ ته امپراطور امر کړی چې دا ښځه به پخپله امیرالمومنین ته ورسوو، که چرته په دې ښځه په لار کې څه وشول نو مونږ سره دومره توان نشته چې تاسو سره جنګ وکړو، اوامپراطور به مونږ هم ووژني. نن په هر ځای او هره خاوره مسلمان مظلوم ګرځیدلی او خپله مسلمان دهغوئ د مرستې نوم نه شي اخیستلای، که چرته کوم مسلمان د ظالم په مقابل کې معمولي خبره وکړي نو ګرده نړۍ ورته د دهشتګرد او تروریست نوم ورکوي، او حال دا چې نن په اسلامې دولتونو کې د ښه او پریمانه قوت والا هیوادونه شته خو افسوس چې هغوئ هم نن د غرب په لاس او دهغوئ په اشاره نڅیږي. نن ورځ زیاتره اسلامي هیوادونه د ظالمې کفري نړۍ ښکار ګرځیدلي دي، خو یومسلمان دا تصور هم نشی کولای چې دوئ له دې ظلم نه خلاص کړي یا هغوئ ته پناه ورکړي.

والی المشتکی من سوء حالنا .

# د مرحوم ملا محمد شفيق محمدي

## ژوند او کارنامو ته کتنه

ليکنه: قاري عبدالستار سعيد

ملا محمد شفيق محمدي د مرحوم الحاج ملا فتح محمد آخند زوی او د ملا باز محمد آخند لمسی په ۱۳۷۴ هجري قمري کال کې د روزګان ولايت د مرکز ترين کوټ مربوط د دروشان د قلعه کلاه په سيمه کې په يوه ديندراه او مذهبي کورنۍ کې دې فاني دنيا ته سترګې رونې کړې دي. نوموړی ۷ کلن و چې پلار يې وفات شو، له خپلې مور او يوازينۍ خور سره تنها پاته شو. خو د نوموړي مهربان تره مولوي تورجان صاحب د نوموړي پالنه په غاړه واخيسته، هغه ته يې د خپل اولاد په شان په ډير اخلاص او شفقت سره روزنه ورکړه او ديني کتابونه يې ورته شروع کړل.

ملا محمد محمد شفيق محمدي ابتدائي کتابونه له خپل تره څخه ولوستل، ليک زده کړه او د خطاطۍ هنر يې هم له خپل تره څخه زده کړل، وروسته د علم په سفر پسې ووت. لومړی يې د ترين کوټ د وانو په سيمه کې په مشهور عالم مولوي حمدالله صاحب باندې څه سبقان وويل. ورپسې يې د ديبې د اخندزاده صاحب په درس کې ځای ونيواو څه وخت يې هلته تير کړ. دغه وخت په کندهار کې يو مشهور صوفي او مرشد اوسيده چې د شاه طبيلې په خليفه صاحب ياديده او نوم يې مولوي عبدالغفور صاحب و. ملامحمد شفيق محمدي له هغه سره بيعت وکړ او د نقشبنديې طريقې مريدشو. څه وخت وروسته نوموړی د علم او عرفان په حصول پسې هلمند ته لاړ په سنګين کې يې د مشهور عالم او صوفي (چې په اسحاقزي مولوی صاحب يې شهرت درلود) په مدرسه کې ديره شو، هلته يې نه يوازې ديني کتابونه ويل بلکې له نوموړي صوفي عالم څخه يې د تصوف استفاضه هم کوله. د يادونې وړ ده چې خليفه اسحاقزی صاحب وروسته له ملا محمد شفيق محمدي سره په جهادي جبهه کې هم ملګری و او ملا محمد شفيق محمدي ته يې د تصوف د نقشبنديې طريقې اذن هم کړی و.

ملا محمد شفيق محمدي خپل علمي سفر تر ورې دورې رسولی و چې په افغانستان کې د دهري کمونيستانو لخوا کودتاه وشوه او د دې اسلامي هيواد چارې يې په واک کې واخيستې. ملا محمد شفيق محمدي دغه وخت په خپله اصلي سيمه کې د قلعه کلاه په اخندزاده صاحب مولوي عبدالقيوم صاحب باندې سبقان ويل چې جهادي پاڅون پيل شو، نوموړی په روزګان ولايت کې له لومړنيو کسانو څخه و چې د کمونيزم پر خلاف يې مسلح جهاد شروع کړ.

#### د کمونيزم پر خلاف د مسلح جهاد پيل

کله چې کمونيستانو (خلقيانو او پرچميانو) په افغانستان کې د ظالمانه کودتا په توسط واک ترلاسه او د بانفوذه خلکو لکه علماء کرامو، طالبانو، صوفيانو، قومي مشرانو او ملکانو په نيولو يې پيل وکړ. دغه وخت د کمونيزم پر خلاف په اولس کې د پاڅون هنګامه پيل شوه. د روزګان په ولايت کې لومړی د اسلام درې په سيمه کې طالبان سره را يوځای شول او د جهادي پاڅون

اعلان يي وکړ. په دغو طالبانو کې دوه مطرح او مخور کسان ملا محمد شفيق محمدي او د ماما زوی يې ملا الله داد آخند و. د ۱۳۵۷ لمريز کال په ژمي دوی د شاوخوا دوه سوه تنه اولسي- مجاهدينو په همکارۍ د روزګان د چورې ولسوالۍ په مرکز برید وکړ. په دې حمله کې ملا الله داد اخند شهيد شو او دښمن ته هم په کې زيانونه ورسيدل.

ملا محمد شفيق محمدي له دې وروسته له خپلو څو تنو مجاهدينو سره په اسلام دره سيمه کې خپل لومړنی جهادي مرکز جوړ کړ، د دوی د وسلو له اړخه له ډيرو مشکلاتو سره مخامخ و، څو تنه مجاهدينو چره يي او نور کمزوري ټوپک لرل او ځينې په خنجر، توره، خردُم ټوپک او دې ته ورته پخوانيو وسلو مسلح وو. دوی به له دې مرکز څخه د شپې مهال عمليات کول. په بيلابيلو سيمو کې يې د کمونيستانو مراکز تر بريدونو لاندې نيول. کله چې جهادي ګوندونه د مولوي محمد نبي محمدي صاحب تر مشرۍ لاندې سره متحد شول. ملا محمد شفيق محمدي پيښور ته لاړ له مولوي محمد نبي محمدي سره يې وليدل او د مجاهدينو د متحد ګوند غړی شو. په دې سفر کې نوموړي له حرکت انقلاب اسلامي تنظيم څخه څه وسلې هم ترلاسه کړې او په لومړي ځل يې مجاهدين په ښو وسلو سمبال شول. ملا محمد شفيق محمدي وروسته د مولوي محمد يونس خالص په تنظيم کې شموليت وکړ او بيا يې د کمونيست نظام د سقوط تر وخته دهمدې تنظيم تر سرپرستۍ لاندې جهاد کاوه.

### مهمې جهادي کارنامې

د ملامحمد شفيق آخند جبهه چې په پيل کې د نوموړي محدود شمير ملګري په کې را يوځای شوي وو او د طالبانو په جبهه يادېده، وروسته يې پراخ ولسي نفوذ او ملاتړ ترلاسه کړ. د جبهې رسمي نوم (جبهه صديقيه) کېښودل شو او د ولسي- مجاهدينو په ملاتړ يې د کمونيستانو د ټغر ټولولو جهادي مبارزه پيل کړ. د جهادي عملياتو په لومړي پړاو کې د چورې ولسوالي د مرکز په شمول پراخې سيمې فتحه او د مجاهدينو تر واک لاندې راغلې، ورپسې د مرکز ترين کوټ اړوند ددروشان ناوه هم مکمله د دښمن له شتون څخه تصفيه شوه. دغه راز د ترين کوټ يوه بله مهمه سيمه مراباد ناوه هم مجاهدينو ونيوله. د دروشان او مراباد سيمې چې د صديقيه جبهې مجاهدينو فتحه کړې وې، بيا کمونيستان ونه توانيدل چې اشغال يې کړي. په دې سيمو کې د ملا محمد شفيق محمدي تر واک لاندې بشپړ اسلامي نظام نافذ و. مجاهدينو شرعي محاکم او د ولسي چارو د پر مخ بيولو لپاره ملکي ادارات درلودل. چې دغه حالت بيا د تنظيمي جګړو په کلونو کې هم روان و تر څو د طالبانو د اسلامي تحريک په راتګ سره نوموړي د دې سيمو واک اسلامي امارت ته وسپاره.

د چورې، دروشان او مراباد له فتوحاتو وروسته مجاهدينو د ترين کوټ ښار سره نږدې دښمن ته خط واچاوه او همدلته يې له کمونيستي عسکرو سره جګړې کولې. خو له دې سره سره ملامحمد شفيق محمدي او ملګري يې له ترين کوټ علاوه په نورو سيمو کې هم د مجاهدينو همکاري ته ورتلل. د شوروي يرغل په لومړي کال چې روسانو روزګان ته لويه قوه راوسته او مجاهدينو ورسره سخت جنګونه وکړل هم نوموړی په کې برخوال و. همدغه وخت مجاهدينو په دهراوود ولسوالۍ کې عمليات پيل کړل، ملامحمد شفيق محمدي له خپلو مجاهدينو سره دهراوود ته لاړ هلته د عملياتو په مهال د ديوان ورخ په سيمه کې پر مټ باندې ټپي او څو تنه ملګري يې شهيدان شول.

ملا محمد شفيق محمدي د روس ضد جهاد په کلونو کې د صديقيه جبهې په چوکاټ کې تر ۱۰۰۰ تنو زيات مجاهدين درلودل، چې اکثره طالبان، صوفيان او متدين عوام خلک وو. دوی چې دمرکز ترين کوټ په دوو مهمو ناوو (دروشان او مراباد) باندې واکمني او مراکز درلودل په نورو سيمو کې يې هم جهادي عمليات کول، له دې جملې د نوموړي مجاهدينو د هلمند د سنګين او ګرشک، د کندهار د شاوليکوټ، ارغنداب او ميوند په سيمو کې هم په جهادي عملياتو کې شرکت کاوه. د جهاد په

وروستيو کې د دهراوود لوی جنګ کې ګډون چې روسانو په کې ډېر ځواک وکاراوه او د دره په نور په سيمه کې د شهيد لالا ملنګ سره په ګډه د شورويانو د قوې له منځه وړل د ملا محمد شفيق محمدي د جبهې د مجاهدينو له سترو کارنامو ګڼل کيږي.

## په اسلامي امارت کې خدمتونه

د کمونيستي واکمنۍ له نسکوريدو وروسته هم ملا محمد شفيق محمدي په خپله سيمه کې بشپړ واک درلود. د جهاد د وخت شرعي محاکم او مدرسې يې فعاله وې. د خپل واک په ساحه کې يې هيڅوک خودسرۍ ته نه پريښودل. کله چې په کندهار کې د طالبانو اسلامي تحريک قيام وکړ، د کندهار د ځينو سيمو له نيولو وروسته د ملامحمد عباس اخند په مشرۍ د طالبانو وفد روزګان ته راغی، ملا محمد شفيق محمدي ورسره وليدل او کله يې چې د هغوی په اړه خپل معلومات بشپړ کړل نو له خپل جانبه يې د مکمل ملاتړ ډاډ ورکړ.

نوموړی وروسته له خپلو ملګرو مجاهدينو سره کندهار ته راغی، خپل ملګري يې د طالبانو په نظامي تشکيلاتو کې داخل کړل، چې د ميدان ښار او کابل په استقامتونو کې يې جهادي خدمتونه ترسره کول او په خپله ځه موده د لوګر ولايت مسؤل وروسته د غزني ولايت د والي په حيث وټاکل شو. په غزني کې له ځو کاله ولايت وروسته د پکتيا ولايت والي شو، ورپسې د سمنګان ولايت والي شو، بيا د خوست ولايت والي او په پای کې بيرته د پکتيا ولايت د والي په حيث تعين شو، چې د امريکايانو د يرغل تر وخته يې همدې وظيفې ته ادامه ورکړه.

د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال د نوموړي د اړوندو مجاهدينو نظامي مشري په پيل کې ملامحمد نعيم نافذ پر مخ وړله چې د کابل د ريشخورو د فرقې او بيا د پکتيا د دريم نمبر قول اردو قومندان ټاکل شوی و. د نوموړي له شهادت وروسته د نوموړي د جبهې بل تکړه مجاهد ملا عبدالرزاق نافذ د همدې جبهې د نظامي چارو مشري په غاړه واخيسته. ملا عبدالرزاق نافذ د افغانستان په شمال کې د اسلامي امارت يو له وتليو نظامي مشرانو ګڼل کيده. نوموړی وروسته په کندهار کې هم تر وروستۍ ورځې له امريکايانو سره وجنګيد، د امريکايانو خلاف جهادي پاڅون کې يې اساسي نقش درلود تر څو په همدې لار کې د شهادت لوړ مقام ته ورسيد.

د امريکايي يرغل نه وروسته کله چې طالبان له ښاري سيمو پر شا شول ملا محمد شفيق محمدي هم خپلې سيمې ته راغی ځه موده په خپل کلي کې په مخفي ډول واوسيد او وروسته چې څرنګه چې د امريکايانو او د هغوی مزدورانو ځار پسې ډېر و نو يې له خپلې سيمې هجرت وکړ. د امريکا خلاف جهادي مرحله کې نوموړی د جهاد د ستر داعي او د اسلامي امارت د يوه تجربه کار او مدبر مشاور په حيث خپل شخصي-ژوند کاوه. د نوموړي جهادي جبهې او ملګرو په جهاد کې مهمه ونډه درلوده، د نوموړي د جهادي شاګردانو له جملې لومړی ملا پای محمد آخند د ترين کوټ د مراباد له سيمې د امريکايانو خلاف جهاد پيل کړ. چې له شهادت وروسته يې د ملا محمد شفيق محمدي نږدې قريب ملا مطلب آخند د جهادي چارو مشري په غاړه واخيسته تر دې چې هغه هم په دې لار کې شهيد او شهيد حافظ ګل يې پر ځای وټاکل شو.

## شخصي ژوند او خصوصيات

مرحوم ملا محمد شفيق محمدي د يوه استثنائي تشخص خاوند و. له يوې خوا مشهور صوفي او د نقشبنديې طريقې مأذون و چې نه يوازې سهار او ماښام يې خفيه اذکار کول، بلکې د قران کريم له معلوم تلاوت علاوه يې حزب البحر او دلائل الخيرات وظيفه هم نه پريښوده. د نوموړي زوی مولوي خليل الرحمن وايي چې مولوي صاحب به هره شپه تهجد ته پورته کيده. د تهجد له لمانځه وروسته يې وظيفه کوله او چې کله به د سهار د لمانځه لپاره مسجد ته لاړ بيا به د ځاښت لمانځه له اداء کولو وروسته کور ته راته. تر غرمې به يې خپل د ليکوالۍ کار

کاوه. د مازدیگر له لمانځه بیا د ماخستن د جماعت د اداءکولو تر وخته یې هم وخت په ذکر تیراوه چې همدا یې همیشنی معمول و.

له تصوف سره سره نوموړی تکړه مجاهد هم و چې د عمر اکثره برخه یې په جهادي خدمتونو کې تېره شوه، له دې علاوه نوموړي له دیني علمه هم ښه برخه درلوده. د فقهې د کتابونو او تفاسیرو ژوره مطالعه یې درلوده. له فارسي ادبیاتو سره یې هم ډیر شوق او په فارسي ژبه یې روانه لیکوالي کولای شوای.

مرحوم محمدي صاحب د خطاطۍ او میناتورۍ له فن سره هم ژوره علاقه درلود او په دې برخه کې لوړ استعداد څخه برخمن و. نوموړي ګن شمیر کتابونه په خپل لاس خطاطي کړي او میناتوري کړي دي چې هر یو یې ستره هنري پانګه ګڼل کیږي. یو قران کریم یې په داسې ډول په طلایي رنګونو میناتوري کړی چې د هرې صفحې نقش یې له بلې څخه بیل دی. دغه راز د بخاري شریف فارسي ترجمه، زاد المسلمین، حزب البحر، دلائل الخیرات، قصیده برده، رساله نورانیه او رساله بصریه یې په خپل لاس په ډیر کمال سره خطاطي او میناتوري کړي دي چې قلمي نسخې یې لوړ تاریخي هنري ارزښت لري. د نوموړي زوی مولوي خلیل الرحمن وایي د امریکا ضد جهاد په لومړنیو کلونو کې د اسلامي امارت مهم مشران لکه الحاج ملا برادر اخند، شهید ملا اختر محمد عثماني او شهید ملا داد الله اخند د نوموړي ملاقات ته راغلي وو، کله یې چې د ده لیکنې او قلمي کارونه ولیدل نو یې غوښتنه ترې وکړه چې د جهاد په موضوع یو کتاب ولیکي، ملا محمد شفیق محمدي د ترغیب الجهاد په نوم په پښتو ژبه کتاب ولیکه او بیا یې د دوو میاشتو په موده کې خطاطي کړ.

### ملا محمد شفیق محمدي د والي په حیث

ملا محمد شفیق محمدي د اسلامي امارت د واکمنۍ په وخت ډیره موده د پکتیا والي و. ما (د دې کرښو لیکوال) هغه وخت د پکتیا په مرکز ګردیز کې د قران کریم حفظ کاوه. غواړم دلته د نوموړي په اړه خپل لیدلي او اوریدلي حالات درسره شریک کړم.

ملا محمدشفیق محمدي عجیبه سړی و، هیڅ د والیتوب تشریفات یې نه درلود، کله به یې د لمانځه مصلی په اوږه اچولې وه او یوازې به جامع جومات ته د لمانځه لپاره روان و. والي صاحب به چې د کوم کار لپاره زموږ مدرسې ته نږدې د قول اردو قومندانۍ ته راغلی و، نو د مازدیګر د جماعت لپاره به دحضرت بلال مسجد ته د لمانځه لپاره راغی، د مازدیګر له لمانځه وروسته به یې خپل لوی څادر په سر راکش کړ او تر ماښامه به په ذکر بوخت و، کله خو به یې د ماښام له لمانځه وروسته هم خپلې اوږدې تسپې را وایستې او ترڅو به یې چې د ماخستن لمونځ په جماعت نه و ادا کړی نو بیرته نه تلو.

والي نه یوازې ذاتي پاکوالی او تقوا درلوده، بلکې په چارو کې هم خورا تکړه و، د ده په وخت کې د ګردیز ښار ته د رباط لخوا له یوه کاریز څخه د پاکو اوبو نلونه راتیر شول، او د ګردیز ښار په مختلفو برخو کې د پاکو اوبو سلګونه شیردانونه نصب شول، چې دا یوه خورا اساسي پروژه و. دغه راز یې مؤسسات هم په دې مجبور کړل، چې د هسې وخت تیرولو په ځای باید کار وکړي، د معروف موسسې لخوا ټول ښار د څو لسیزو له کچرو څخه تصفیه شو، پلونه او د سړکونو د غاړو او مابین چمنونه له سره جوړ شول، سرکونه ورغول شول، د محمدي صاحب په وخت کې د ولایت، قول اردو، مستوفیت، اطلاعات وکلتور ریاست، نظامي کلوپ، ښاروالی، قومندانۍ، بالاحصار او نورو ګڼو دولتي اداراتو په ګډون ډیرې دولتي ادارې چې په پخوانیو جګړو سختې زیانمنې شوې وې له سره ترمیم او ورغول شوې، او ګردیز ښار له څو کلنو جګړو وروسته یوځل بیا د یو ښایسته او پاک ښار بڼه خپله کړه.

دپکتیا په تیره ګردیز لپاره د والي شفیق محمدي خدمتونه او اخلاص دومره ښکاره وو، چې حتی د اوسني رژیم چارواکي

هم ورباندې اعتراف لرې او په درنه سترگه ورته گوري، دد ې نغد مثال د والي ملا محمد شفيق محمدي د خدمتونو په وياړ جوړ شوی هغه سمبوليکه دروازه (باب محمدي) ده چې د ولايت ودانۍ ته نږدې دگرديز ښار په شنه سيمه کې ولاړه ده، چې اوسنۍ اداري په نوې ښه رنگولې ده.

**د زوی شهادت**

ملا محمد شفيق محمدي پنځه زامن درلودل. چې دوه يې د ده په ژوند د بيلابيلو ناروغيو له امله وفات شوي وو. يو بل زوی يې حبيب الرحمن نوميده چې د امريکا ضد جهاد کې يې په دښمن فدايي بريد وکړ.

د ملا محمد شفيق محمدي صاحب قريبان کيسه کوي، چې کله د نوموړي زوی فدايي بريد وکړ او شهيد شو، نو د اسلامي امارت ځيني کسان د ده کور ته ورغلل چې د زوی له شهادته يې خبر کړي. هغوی فکر کاوه چې ملا محمد شفيق محمدي صاحب به د زوی له شهادته په خبريدو ډير متأثر شي. هغوی چې دا خبره ورته کوله نوموړی دا وخت د يوه تفسير په ليکلو او خطاطۍ بوخت و، کله چې د زوی د شهادت خبره ورته وشوه، له خپلې مخې يې کاغذونه لرې کړل او ځای په ځای الله تعالی ته د شکر په سجده پريووت. کله چې له سجدې راپورته شو. نو يې وويل د الله تعالی حمد دی چې زما په زامنو کې شهيد پيدا شو. دوه زامن مې وفات شوي وو خو تر اوسه مې په کور کې شهيد نه درلود. الحمد لله چې د شهادت له نسبت څخه محروم نه شوم.

**وفات**

نوموړی د۱۴۳۸کال د شعبان په شپږمه چې د ۲۰۱۷ميلادی کال د مې د مياشتې له دوهم تاريخ سره سمون خوري د سه شنبې په ورځ د ماسپښين په څلور بجې او شل دقيقې له دې فاني دنيا څخه سترگې پټې کړې.

اناالله واناالیه راجعون

# شهریان کابل (حکیم طبیب)

#بخوانید_تا_شکاربعدی_شما_نباشید

۱. در کابل صدها مبایل قیمتی از جاده ها، کوچه ها و موتر های شیشه باز، از دست مردم ربوده شده است، لذا در دست نگیرید (رباینده گان در کمین هستند!!)

۲. در مواقع بیروبار مثلاً اثناء سوار شدن به موتر های شهری، داخل ملی بس و نقاط پرجمعیت مواظب جیب های تان باشید که هزاران تن در این موارد کیسه بری شده اند.

۳. تقریباً تمام موارد و صحنه هایی که توجه مردم را در شهر و بازار جلب میکند، اتفاق نیست!! طراحی شده است، برای شکار و جیب خالی کردن!!! مثلاً جنگ و نزاع ها، میانجیگری ها، بازی ها، جایزه و قرعه کشی ها و...

۴. در موتری که سوار میشوید و یا اجناس تان را بار میکنید حتماً نمبر پلیت آن را در مبایل تان ثبت کنید و کراچی را که کرایه می کنید از دنبال کراچی وان حرکت کنید (نه پیشاپیش آن)

۵. در مسافرت هوشیار باشید! خوردنی و نوشیدنی های که به شما داده میشود خواب آور و مسموم کننده نباشد!!!

۶. شب ها لامپ بالای دروازه بیرونی و داخل حویلی را روشن بگذارید تا دزدان جرئت داخل شدن را نتوانند!!

۷. کسانی که بنام فالبین، فقیر، دکتر، پولیس و... میخواهند وارد خانه تان شود، اجازه ندهید!!

۸. به کودکان خورد تان شماره تماس تان را خوب یاد دهید!!

۹. کودکان خورد تان را هشیار سازید که پشت موتورسایکل و بایسکل افراد ناشناس سوار نشوند (برای پیشگیری از اختطاف)

۱۰. زمانی که از صرافی و یا بانک پول می گیرید در خطر تعقیب شدن قرار دارید!! پس هوشیار باشید.

۱۱. برای احتیاط در پشت تذکره، پاسپورت و اسناد مهم تان، شماره تماس خود را بنویسید تا در صورت گم شدن اگر کسی پیدا کرد زنگ بزند.

۱۳. هر زمانیکه میخواستید جایي بروید اگر موتري براي تان بریك زد و گفت کجا میري؟ هرگز در آن موتر سوار نشوید چون اکثریت دزدي ها و کیسه بري از همین شیوه نشأت میگیرد.

۱۴. تا جاي ممکن کوشش کنید تا وقتر به خانه بروید چون دزدان اکثراً از طرف شب راهزني میکنند.

خلاصه اینکه در شهر و بازار شکارچیان ماهر در کمین تان است، دام ها و نیرنگ های مختلف برای اغفال شما بکار میرود، ما بصورت خلاصه اشاره کردیم و تفصیل آن را باید خود بفهمید و بفهمانید!!!

خصوصاً اطرافی ها زود طعمه این گرگان میشوند!

# پر امریکایي اډو

## د ایران تر برید وروسته

■ عبدالرحیم (ثاقب)



ایران د جنرال قاسم سلیماني د وژنې د غچ په لومړني غبرګون کې په عراق کې پر دوو امریکایي اډو توغندویي برید وکړ.

د ا برید چې د ۱۲ بالیستیکي توغندیو په مټ تر سره شو ایران یې له امله د ۸۰ تنه امریکایانو د وژنې ادعاء وکړه خو ولسمشر ټرمپ په خپلې وینا کې وویل چې امریکایان د ایران د توغندویي برید له کبله هیڅ ځاني تلفات نه لري.

ایراني چارواکو ګواښ وکړ چې که یې امریکایان د برید په اړه غبرګون وښیي دوئ به په سیمه کې نور ۱۰۰ امریکایي اهداف هم په نښه کړي.

منځنی ختیځ له ۱۹۹۰م کال څخه را هیسې- له کله چې صدام حسین د امریکا په دستور پر کویټ برید وکړ او بوش پلار یې د نړیوال اشر په راټولولو سره په غبرګون کې متقابلا پر عراق یرغل وکړ تر اوسه د سیالو قوتونو د پوځي، استخباراتي او اقتصادي سیالیو ښکار دی.

د ایران او امریکا ترمنځ اوسنۍ لانجه په حقیقت کې د خلیج له هماغې دوهمې جګړې څخه سرچینه اخلي چې امریکایانو د کویټ د دفاع په پلمه په خلیج کې خپلې جنګي بیړۍ لنګر کړې.

د ایران او امریکا ترمنځ د اوسنۍ لانجې اغیزې یواځې په منځني ختیځ پورې محدودې نشي- پاتې کیدای؛ بلکې هلته موجود بحران ټوله سیمه اوحتی ټوله نړۍ له پوځي او اقتصادي بحران سره مخ کوي.

په خلیج فارس کې د هُرمُز تنګی او په یمن کې د باب المُندب تنګی چې بهرنۍ نړۍ په تیره غربې هغې ته د خلیج د نفتو صادرولو دوې مهمې لارې ګڼل کیږي دواړه په منځني ختیځ کې موقعیت لري او دواړه په داسې ځای کې دي چې که ایران وغواړي له دې دوو مهمو لارو څخه نفت وړونکو بیړیو ته مزاحمت جوړ کړي کولای شي.

که د امریکا او ایران ترمنځ روان جنجال زیاتیږي خامخا به هغه له پوځي ساحې څخه اقتصادي هغې ته هم سرایت کوي او په دې سره له هرمز او باب المندب دواړو تنګیو څخه غربي نړۍ ته تیریدونکې نفت وړونکې بیړۍ به د ایران لخوا ګواښل کیږي چې دا ګواښ به حتما پر نړیوال اقتصاد منفي اغیزې پریږدي.

په پوځي ساحه کې افغانستان چې وار تر له مخه د امریکا د اشغال له وجې ورکې یو کمزورۍ، فاسد او بلواکه حکومت موجود دی، دلته د دې حکومت تر وزرو لاندې تولید شوې تروریستي عناصر به د امریکا او ایران په لمسون د افغانستان د مزیدې بې ثباتي هڅه کوي.

منځنی ختیځ چې د اسلامي نړۍ د اقتصادي مرکز په توګه خاص اهمیت لري، امریکایان غواړي هلته په بې ثباتي او بحران جوړولو سره د ځان د نفوذ لپاره زمینه مساعده کړي.

له همدې امله له تیرو څلورو لسیزو راهیسې هلته ټول پیښیدونکي تحولات، هغه که په (۱۹۸۰) کې د ایران عراق جګړه ده، که په (۱۹۹۱) د کویټ د آزادولو په پلمه پر عراق د امریکا او متحدینو برید دی، که په (۲۰۰۳) کې پر عراق د امریکا پوځي یرغل دی، که په (۲۰۱۰) م کې د عرب پسرلي په نوم په ځینو عربي هیوادونو کې د حکومتونو راپرځول دي، که په (۲۰۱۰) کال کې په عراق کې د داعش تروریستي ډلې جوړول دي، او که په (۲۰۲۰) کې د امریکا لخوا په عراق کې د ایراني جنرال قاسم سلیماني وژل دي دا ټول د امریکا په قومنده او دستور د دې لپاره تر سره شوي چې له همدې تحولاتو څخه په استفادې سره امریکا منځني ختیځ تر خپل نفوذ لاندې وساتي او د هغه له سر شاره اقتصادي منابعو (نفت / ګاز) څخه د خپل تولید او صنعت لپاره ګټه پورته کړي.

او همدا راز په اشغال شوي فلسطین کې د امریکا په ملاتړ جوړشوي صهیونیستي رژیم حمایت ته په پوځي او استخبارتي لحاظ زمینه مساعده شي.



# دواعش وپیژنئ؟!

داعش یوه داسې خبیثه تکفیري ډله ده، چې د اسلامي امت پر هغه ټولو اسلام پالو خوزښتونو او خلګو باندې یې د کفر او شرک ټاپې ولګولې، چې د رواني پیړۍ په پیل کې یې د ټول صلیبي ائتلاف په وړاندې د اسلام د دفاع لپاره د قربانۍ ټېر وواهه، بیلا بیل مشقوتونه، تکلیفونه، دردونه او ټپونه یې تیر کړل، خو نړۍ یې د ایمان او اسلام له څواکه خبره کړه، د نړۍ د جدید ټیکنالوژۍ او ماډرونو وسلو په وړاندې یوازې په تش لاس خو په ایماني غیرت او عقیدوي قوت مبارزه وکړه.

دا دی دوې لسیزي نه دې تیري شوي، چې د صلیب د بندګانو ائتلاف یې د ایمان په زور ور دړې وړې کړی، په بیلابیلو رنځونو یې اخته کړل، له هر اړخه یې مات مات او ټوک ټوک کړل، اوس نو په یوه او بل نامه د جګړې له ډګره پښې سپکه وي او د تیښتي لاره خپلوي.

خو د داعش په نامه څو وحشي صفته درندګان چې د یو چا له لورې تقویه او تغذیه کیږي، د ایمان او عقیدې پر دا منارونو د کفر ټاپې لګوي.

له یوه داعشي ـ څخه مې د فیسبوک لاري دا پوښتنه په تکراري ډول کړې ده، چې تاسې ولې وسلې له امریکایانو اخلی او جګړه له طالبانو سره کوی؟ خو د ده ځواب بس همدا یو دی، چې اسلام له نظره د یوه کفر د ماتولو لپاره د بل کفر څخه کومک غوښتنه بلکل جائز او روا ده.

او تاسي به هم کله د دوی خبرونه اوریدلي وي او یا به مو د دوی خبرونه پاڼو پر مخ کتلي وي خصوصا د دوی رسمي نشریه الاعماق په نامه چې نشر ـ کیږي د طالبانو سره د مرتدینو لفظ هم وایي او لیکي. [العیاذبالله]

نو دا د ټول اسلامي امت له لپاره یو سرطان او ستر ناسور دی، او ټول باید د دې فاسدې ډلې د ورکیدو لپاره لاس په کار شو، د اسلامي امارت د غازیانو په لاسو کې دې خدای جل جلاله برکت واچوي، په نظامي ډګر کې یې سخت وځپل او لنډ وخت پاتي دی چې له ټول هیواد څخه به یې ریښې ویستل شي. نسخ د داعش وپیژنئ پاڼي څخه

ملي اردو، ملي پولیس، عامه نظم، قطعه خاص!

ایا دوی وطن ساتونکي دي او که دصلیب کرایه شوي اجرتي قاتلان؟

د ټولنې خدمتګاران دي او که د واشنګټن او نیوریاک څوکیداران؟

ولس ساتونکي دي او که د مسلمان او غیور ولس د وینو تږي؟

د استعمارګرو قوتونو ترټولو خطرناک حالت دادی:

چې دوئ د خپلو کاذب شعارونو او درواغجنو تبلیغاتو په توسط عامه اذهان تخریبوي، او په ډیره اسانه توګه ځان خپل شوم هدف ته رسوي.

د تاریخ پاڼې شاهدې دي چې صلیبي اشغالګرو همېش خپل روزل شوي ګوډاګیان په غیر شعوري ډول د ځان لپاره د ډال په توګه استعمال کړي دي. د وحشي ـ یرغلګرو په لاس دغه روزل شوي عساکر د امریکا او غرب د ګټو لپاره جنګیږي، دغه بیشعوره او احمق غلامان د یوه کرایه شوي اجرتي قاتل دنده پرمخ وړي، چې د یو څو ډالرو په بدل کې د مسلمان او غیور ولس وینې تویوي، دوی یوازې د هغه جګړه ایزې نقشې له مخې عملیات ترسره کوي چې د CIA او NDS په نوم استخباراتي کړیو له خوا یې ورته طرحه جوړه شوي وي.

دا ګوډاګیان د وطن او یا کفن د غولونکو او تیراستونکو شعارونو په توسط د جمهوریت او دیموکراسۍ دپاره قربانۍ ورکوي.

مسلمان ځوانان د اسلامي امت شتمني ده، خو متاسفانه چې استعمار دا شتمني نن د اسلام په خلاف او د خپل ځان په ګټه استعمالوي.

دا یو منلی شوی حقیقت دی چې د استعمار ژرنده همېش د غولیدلو اجیرانو په وینو چلیږي.

#سرار خان



# د طالبانو د وخت

## یوه جالبه خاطره

م حیات الله

یو هزاره افغان راته ویل: د طالبانو وخت کې مې د موټرو کاروبار کاوه، موټر به مې اخیستل او خرڅول، یوه ورځ کابل نه لوګر ته روان وم موټر کې راسره درې څلور سوه میلونه افغانۍ وې، طالبانو ودرولم پیسې یې ولیدې، پوښته یې وکړه چې دا دومره ډېرې پیسې څه کوې؟ ما ورته ویل: چې زه لوګر ته ځم موټر اخلم، وای چې پوه شول په رښتیا هم د موټرو کاروبار کوم، راته یې ویل: چې ځه! روان شوم چې کله لوګر ته ورسېدم، موټر نه ښکته شوم د طالبانو موټر هم ودریده، همهغه طالبان وو حیران پاتې شوم، وای راته یې ویل چې نور درنه لاړو تا پسې ددې لپاره راغلو چې څوک درنه پیسې وانخلي.

### تبصرې!

**دې خاطرې ته د ټولو ملګرو تبصرې د (حقیقت دی) تبصرې وې، خو ځینو له دې جملې سره یوه تبصره هم کړې وه، چې لاندې یې درسره شریکوو**

**خپله طارق نایک پرې تبصره کوي:**

کابل کې چې څومره پولیس دي، د دې په نیمایي طالبان دې راولي واک دې ورکړي، یوه هفته کې به خلک د لارو پر سر خپل موبایلونه چارج ته کېږدي، هېڅوک به یې وانه خلي.

**د پکتیا شاهین په نوم یو ملګری لیکي:**

حقیقت ده، داسې وخت ؤ شپه او ورځ په لویو لارو او ښارونو کې د غلو وېره نه وه، ډېر ښه وخت ؤ او تر څو چې شرعي نظام رانشي غله، لنډغر او رشوت خواره نه ورکیږي.

**عبدالوهاب هوتک لیکي:**

د طالبانو باچاهي خو د مسلمانانو لپاره ستره هستي ده، که مسلمانان پوه شي.

**صفت الله صاحب لیکي:**

اوس هم د طالبانو تر ولکه لاندې سیمه کې همهغسې أمن دی، آن که د شپې دروازې خلاصې وي، هم کوم مشکل نشته.

**جاوید حقیار صافی لیکي:**

بالکل حقیقت دی، الله جل جلاله دې هغه دوران بیا راولي.

**سید عمر زهیر لیکي:**

پرې ویاړو اللّٰه جل جلاله دې دوی کامیاب کړي.

**سمیع حنفي لیکي:**

یو دوه میاشتې مخکې تللی وم کابل ته، که ټیکسي- والا وو که دکاندار او که صراف یا به د چا مریضان وو او همداسې که بل کوم کس به وو ویل به یې خدای دې طالبان راولي چې له دې غلو او لوچکانو خلاص شو.

**حاجي عزیز احمد لیکي:**

د امتحان لپاره دې یوه حوزه طالبانو ته ورکړي د یوه کال لپاره که هغه د کابل قېمت ترینه حوزه نه شوه، ما دې په آریانا چوک وځړوي.

**ابراهیم خپلواک لیکي:**

طالبان چې څومره امنیت ته ژمن ول، همدومره هیواد ته هم ژمن ول.

**برکت الله روحاني لیکي:**

اسلام دین پخپله دامن دین دی.

که هرحکومت یې عملي کړي بریالی به وي.

**رومال رحماني لیکي:**

هغه وخت هیچا هم د غلا او إختطاف جرأت نه لرلو

ځکه هلته شریعت تطبیق کېده، دا غلاوې او إختطافونه خو د ډیموکراسي سره وغوړېدل.

**جاوید اریوبی لیکي:**

د طالبانو دولتداري په تاریخ کې مثال نه لري.

**محمد انور لیکي:**

أمنیت به ولې نه ؤ، چې عسکر یې دومره پاک نفسه ؤ؟

مرکوال (عاکف)

## دهیواد پیاوړي اوجید عالم شیخ القران والحدیث

# مولوي عبدالواحد مدظله العالي

## سره دځرک مجلې ځانګړې علمي مرکه:

د استاذانو خدمت، دموراوپلار دعاګاني، وخت ضائع او عبث نه تېرول او له دې تولو زیات مهم په نیت کې اخلاص د شریعت پابندي او ازار نه اخیستل دي دعلمي بري مهم رازونه دي

مرکيال:

پوښتنه: جناب شیخ صاحب ځرک مجله دخپلو نومیالیو شیوخو او استادانو سره دمرکو او پیژندلو په لړ داخل تاسې انتخاب کړي یاست، ترڅو مو درانه لوستونکي او مینه وال دقیمتي ژوند له لوړو ژورو، علمي تجاربو اونصائحو څخه مستفید وګرځي.

نو که مو خوښه وي پیل به یې ستاسي له ځاني تعارف څخه وکړو چې دې فاني دنیا ته مو چیرته، څه وخت سترګې پرانیستي، ابتدایي او منځنۍ زدکړې مو چیرته پیل او ترسره کړې او لوړې زدکړې او بالاخره فراغت مو چیرته وشو؟

شیخ صاحب: د افغانستان اسلامي امارت د اطلاعات او فرهنګ د شعبې مسئولینو، بالخصوص د ځرک مجلې مدیرانو، همکارانو او بیا عامو لوستونکو او کتونکو ته

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

و بعد اولاً د ځرک مجلې د مسئولینو ډیره شکریه ادا کوم او له الله جل جلاله نه ورته جزاء خیر غواړم چې زه یې په دغه لیست کې حساب کړی یم، کنه دا په یقین سره درته وایم، چې زه د هر عالم د پښو خاورې ځان ګڼم او یم، د مطلق ملایي دعوه او بیا د شیخیت یا اوچت علم دعوه خو هیڅ کله نه کوم او نه یم.

په هر حال تاسې ته دې الله جل جلاله په دې خپل حسن ظن اجر عظیم درکړي او د تاسې د حسن ظن په بناء به ستاسې پوښتنې حسب الوسع جواب کړم.

زما نوم عبدالواحد د شهید ملا عبدالخالق ځوی او د مرحوم حاجي جمعه ګل لمسی یم.

پیدایښت مې د لوګر مرکز اړونـد د دادوخیلـو کلـي کې په سنه ۱۳۵۸ هـ ش کال د جدې میاشت کې شـوی دی او د عمر اولنی حصه کې چې یو کال شاوخوا بـه وو د مشـرانو نـه د اوریدو په بناء د یتیم ولی څپیړې وهلی وم.

هغه داسې چې زمونږ والد صیب مرحـوم د وړې دورې د طـالبی وخـت کې وو کـوم چې اوس ورتـه موقـوف علیـه وایي، د وحشي یرغلګرو ظالمو روسـانو لخوا لـه خپلـو دوو ترونو سره یو ځای داسې مهـال پـه شـهادت ورسـېد چې پـه ډیره میړانـه او غیـرت سـره یـې د تلاشـۍ پـه وخـت کې پـه روسانو د برچې ګوزار کړی وو ځکه هغه ابتدایي حـالات و، نورې اسلحې نه وې مجاهدینو سره، چې وروسـته هغـوی پـه ډیره بېرحمی لومړی په شهادت ورسولو، وروسته یـې د بـدن اکثره اعضاء ترې غوڅ کړي وو.

له همدې پیښې وروسته موږ پاکستان ته مهاجر شولو د هجرت اولنی ټاټوبی مو د خیبر پختونخواه اړونـد ایبټ ابـاد ته څیرمه د هریپور کېمپ و، چې تراوسه پکې ژوند تېروو.

زده کړې مو هم ابتداءًا په هریپور کې په خپل کور کې لـه خپل روحاني پلار نسبي تـره مشـفق اسـتاذ مولـوي صـاحب عبدالمالک نه په ډېر وړوکوالي کې شروع کړې، او څه وخت وروسته بیـا د هغـه پـه یـوه مسـجد کې چې د دادوخېلـو پـه جامع مسجد یادېده درس و، طالبان ورسره وو، هلتـه مسـافر شـوم، چې څـه درسـونه مـو و ویـل وروسـته بیـا همدلتـه پـه هریپور کمپ کې د دارالعلـوم العالیـة العربیة پـه نامـه مدرسـه جـوړه شـوه، چې مشـري یـې زمـوږ اسـتاد محتـرم قاضـي صاحب عبدالعزیز زرمتي کوله، تـر مختصـر المعـاني او سـلم العلوم پورې مو کتابونه همدلته وویل چې اکثریت مطلق مې له خپل تره محترم څخه او ځینې یې له مرحـوم مولـوي سـید عمر صاحب، مواوي صـاحب یارمحمـد او مولـوي صـاحب محمد عمر غفاري څخه ویلي، څه کم مو د مدرسې لـه نـورو استادانو ویلي، بیا له دې نه وروسته دارالعلوم حقانیـه اکـوړه خټک ته د خپل اسـتاد او مربـي پـه رهنمـایي راغلـم، شـپږمه درجـه شـرح عقایـد، تلـویح، جلالـین، هدایـه نکـاح او د همدغې درجې کتابونه مې دلته وویل، دې نه وروسته مې بیـا

یو کال د چراټ جامعه محمدیه کې تېر کـړ، چې هلتـه مـو مطـول، صـدرا، مسـلم الثبـوت، مـلا حسـن شـاوخوا کتابونـه وویل، بیـا بېرتـه دارالعلـوم حقـانیې تـه راغلـم چې د تکملې پاتې کتابونه او دوره موقوف علیه او دوره حدیث مې همدلتـه سر ته ورسول او سند فراغت مې هم دلته حاصل کړ.

او دا به پـه طریقـه د تحـدیث بالنعمـة سـره و وایـم چې درجه موقوف علیـه او دوره حـدیث دواړو کې مې تخـریج د اول نمبر په حیث وو.

پوښتنه: عزتمنده: غواړو دغه پوښتنه لږ پراخه او په څـو برخو کې راونغـاړو هغـه دا چې د دیني علومـو زده کـړې لـه خوراګڼو مشکلاتو او تکلیفونو سره ملې وي داسې یـو څـوک وو چې له دغو تکلیفونو سـره یـې دیني علـم تـه تشـویقولی، ستاسو مینه یې ورسره ډیرولـه او هغـه مهـال مـو داسـې فکـر کړی وو چې یو وخت به د امت د جیدو علماء پـه قطـار کې راشئ.

ستاسو د پوښتنې پـه ځـواب کې بـه دومـره و وایـم چې تشـویقوونکی، هڅـوونکی او حتـا مجبـوروونکی ځکـه زه ماشـوم وم، همدغـه محبـوب او محتـرم تـره، والـده شـریفه، محترم نیکه او په عامه کې ټول اسـتاذان وو چې د شـاګردي او یتیمي دواړو شـفقت یـې رابانـدې کـاوه او بـل د اللـه جـل جلاله ډیره شکریه ادا کوم چې په هغه کم عمر کې یې راتـه د هر قسم مشکل کتاب چې د کتاب ډیـر زر کتلـو او حـل کولـو استعداد یې راکړی وو.

دا چې هغه مهال مو داګمـان وو چې پـه راتلـونکي کې به عالم شم!

هوکې! بناءً په دې حدیث قدسي (انـا علـی ظـن عبـدي بي) داسې یو روښانه مستقبل راتـه معلومیـده چې امیـد شـته الله جل جلاله به مې عالم کړي.

پوښتنه: لکه مخکې مو چې یادونـه وکـړه د طـالبي دوره کې په عمومي توګـه مشـکلات وي سـره لـه دې چې تاسـو د یتیم ولی څپیړه خوړلې وه ایا داسې مشکلاتو سره مخ شـوي یاست یو څه که راته په ګوته کړئ چې تاسو ورسره مخ شـوي یاست.

شـیخ صـاحب: هـو. مشـکلات خامخـا وي ځکـه :
**العطایا علی متن البلایا!**

دارالعلوم حقانیې ته به چې تلم نـو د یـوې نیمې یـا دوه میاشتو خرچه به راسره سل یا یو نیم سل پیدا شوه چې هغـه به مو والدې شریفې د هګیو او د چرګو په خرڅولـو برابرولې او کله به چې نه وې بیا به مو په ډېر تکلیف له یـو چـا قـرض پیدا کړې چې دا به د عامو طالبانو د خرچې په نسبت ډېر کـم شی وو.

پوښتنه: ستاسو په اړه ویل کیږي چې خـورا زیـات زیـار کښ او پـه کتـاب مـین شـخص وو ایـا کـوم ورځنـی تقسـیم الاوقات مو درلودلو.

شیخ صـاحب: چونکـه زمـا عمـر ډېـر کـم و، پـه داسې تقسیم الاوقات نه پوهېدم، نه چا راته طریقه ښوولې وه، خـو الحمدلله چې په خپل فطرت کې د وقت عبث تېـرول راتـه ډېر منفور و، وقت به مې پـه تعلـم، وروسـته پـه تکـرار، بیـا د درسي کتابونو پـه مطالعـه، لـه هغـه نـه وروسـته د تقریـر یـا د تاریخ یا د نورو کتابونو په مطالعـه تېرولـو او د خپـل مرحـوم نیکه په وصیت به روزانه ما تقریبا درې سپارې تلاوت کـاوه، زه په کشر عمر کې سفر ته ووتم، نیکه مې راته ویل چې یو د جماعت لمونځ مه قضا کوه، بل تلاوت زیات کـوه بیـا بـه پـه سفر کې نه تنګیږې.

پوښتنه: محترم شیخ صاحب مهم درسونه مـو پـه کومـو مدرسو کې او له کومو اسـتاذانو لوسـتي، فراغـت مـو چیرتـه، په کوم کال او په کومه درجه شوی؟

شیخ صاحب: د دغې پوښتنې ځواب که څه هـم تقریبـا مخکې شوی خو اجمالا خپل کور، دارالعلوم العالیـة العربیـة، دارالعلوم حقانیه، جامعه محمدیه او د قرآن کریم ترجمـه مې یو ځل په شاه منصور کې شیخ القرآن صـاحب حـق صـاحب أطال الله حیاته او بل ځل په ډاګۍ کې شیخ القرآن والحدیث مولانا حمدالله جان صاحب مرحوم سره کړې.

پوښتنه: جناب! که دخپلو څو تنو هغـو اسـتادانو نومونـه راتـه واخلـی چې پـوهیږي علمـي فـیض او برکـت مـو زیـات ورڅخه اخیستی دی او دهغو خلوص او لورینو مـو اوس هـم په زړه کې نقش وي؟

شیخ صاحب: دا چې هر استاذ د قدر وړ دی او خپـل هـر څه د دوی په دعا کې وینم خو لکه تاسو چې ویلي زیـات فـیض او برکت مې د خپل محترم تره اسعده اللـه فـي الـدارین، مفتي صاحب سیف الله حقاني شفاه الله شفاءً تامـةً، شـیخ صـاحب شیرعلي شاه المـدني نـور اللـه مرقـده، شـیخ القـران والحـدیث حضـرت مولانـا مغفوراللـه بابـاجي، شـیخ القـران والحـدیث حضرت مولانا عبدالحلیم دیربابا جي، شیخ القـران والحـدیث مرحوم مولانا فضل الهي رحمـه اللـه، شـیخ القـران والحـدیث مرحـوم حـاجي محمـد صـادق صـاحب نوراللـه مرقـده، شـیخ الحدیث شهید مولانـا نصـیب خـان تقبلـه اللـه او شـیخ القـران والحدیث حضرت مولانـا عبـدالغني حقـاني طـال اللـه عمـره و ادام الله فیضه څخه ترلاسه کړی.

پوښتنه: د درس پر مهال مو داسې کـوم ملګـري وو چـې تاسو یې په اړه هغه مهال په راتلونکي کې د جیـدو مدرسـینو اټکل کړی وو او د ځان په اړه مو کـه راتـه و وایـئ ایـا داسـې څوک مو په ذهن کې هغه مهال راتلو چې کـاش داسـې عـالم جوړ شم.

شیخ صاحب: داسې ډېر ملګـري مـو وو خـو اوس چـې ممتاز علمـاء دي هغـه شـیخ الحـدیث شـهید مولـوي محمـد عالم د ننګرهـار او شـیخ الحـدیث مولانـا رحـیم اللـه حقـاني صاحب چې زما د دوره حدیث ملګری و او ډېر قابل و.

او د ځان په اړه چې کاش داسې عالم رانه جـوړ شـي مـا به اکثره وخت دعا کوله چې الله جل جلالـه دې لکـه د شـیخ صاحب حمدالله جان غونـدې علـم او د شـیخ صـاحب شـیر علي شاه غوندې علم او فصاحت دواړه راکړې.

پوښتنه: د قـدر وړ شـیخ صـاحب: لـومړي دوه کالـه مـو تدریس چیرته او کوم کتابونه تدریسول او که دا راتـه و وایـئ چې د دومره کامیاب تدریس راز مـو پـه څـه کې وو مطالعـه، داستادانو دعاګانې او که بل څه؟

شیخ صاحب: یو کال درس مې په باغوانانو کیمپ کې د سکیپ د مولوي عبدالستار صاحب مرحوم پـه مدرسـه کې

چې جامي مبني، حسامي، کافيه، نور الانوار، داسې نور تقریبا ۱۳ کتابونه مې درسول، دویم کال پېښور ته څېرمه د باړې په مشهوره مدرسه جامعه هاشمیه کې چې قاضي، شرح عقاید، مطول، مسلم الثبوت، تلخيص المفتاح، جامي مبني، هداية الحکمه، د مدرسې لخوا رسمي او نور ګڼ کتابونه مې قبل الوقت او بعد الوقت درسول او درېم کال د خوست په فخر الجهاد مدرسه کې چې له هغه وروسته بيا دلته د هجرت ديار هريپور کمپ کې په خپله مدرسه کې يم، د موقوف عليه او تکملې کتابونه زه او شيخ الحديث مولانا ګل دين صاحب په شريکه درسوو.

د درس د کاميابۍ راز لومړی د الله تعالی په خصوصي عطاء او رحم کې او دوهم د خپل تره او استاذ محترم خصوصي توجه، شفقت او د والدې شريفې دعاګاني او زمونږ د استاذانو دوه ګونی شفقت، يتيم ولي او شاګردي ورسره ورسره د وخت د پابنده ساتلو لحاظ او کوشش کول ګڼم.

پوښتنه: عزتمند شيخ صاحب ستاسي په اړه ويل کيږي چې په ډېره کمه موده کې يې د قرانکريم حفظ کړی، حفظ مو کله او په څومره وخت کې وکړ؟

شيخ صاحب: ما په ۱۶ کلنۍ کې موقوف عليه يعني وړه دوره وکړه او اينده کال د دوره حديث لپاره دارالعلوم حقانيې ته ولاړم، جناب مشفق استاذ حضرت مفتي سيف الله صاحب راته وويل: عبدالواحده! يوه مشوره به ومنې چې در يې کړم؟ ما ورته وويل چې ولې نه، هرومرو به يې منم ان شاءالله

نوموړي راته وويل: که ته اوس ملا هم شې، عمر دې ډېر کم دی، څوک به سبق درنه ونه وايي او دا شته استعداد به دې ضائع شي، ته داسې وکړه چې حفظ شروع کړه، څه وخت به تير شي او عمر به دې هم څه زيات شي، له هغه وروسته به دوره وکړې، ما ورته وويل چې زه به د خپل تره سره هم مشوره وکړم، تره راته وويل چې د حفظ په کولو به سبقونه هم درڅخه ګلوډ شي او حفظ هم، خدای خبر چې نتيجه به يې څنګه شي، خو ما ورته وويل چې د مفتي صاحب داسې مشوره وه او ان شاءالله يو کال کې رانه قرآن کريم ياد وغواړه.

هماغه و چې تره اجازه راکړه او په همدې کال مو کور هم له پاکستان څخه افغانستان ته کډه شو، په افغانستان کې اسلامي امارت حاکم و، هلته مې په جامعه عمريه کې، چې د لوګر په مرکز کې وه، له قاري صاحب احمد نور سره حفظ پيل کړ چې الحمدلله ۴ مياشتو کې له پخېدو سره ختم شو، په مدرسه کې ۳ کلاسونه وو چې د ټول عمومي اول نمبر هم زه شوم او د حفظ د سهولت راز په ډېر تلاوت او دوه ځله ترجمه کولو کې و، د ورځې به مې يو پاو يعني ربع يادوله او په دې جريان کې مې يو دوه ځله الحمدلله نيمه سيپاره هم ياده کړې ده.

پوښتنه: دخپلو تجربو او لوړو ژورو په رڼا کې د اوس دور طالبانو ته دې نصيحت څه دی چې څنګه له وخت څخه کماحقه استفاده وکړي؟

شيخ صاحب: د طالب د کاميابۍ او منزل ته د رسېدلو عمده لاملونه زما په اند ۴ دي:

۱: د استاذانوخدمت کول، له ډېر ادب څخه کار اخيستل او ځان ته د هغوی توجه او شفقت جلبول.

۲: د خپل مور، پلار او نورو حق درلودونکو مشرانو خدمت او دعاء.

۳: کوشش کول، وخت ضائع او عبث نه تېرول او له دې ټولو زيات مهم په نيت کې اخلاص، د شريعت پابندي کول او ازار نه اخيستل دي.

پوښتنه: که د وروستۍ او د پای د پوښتنې په توګه راته و واياست چې په اوسني دور کې د ديني زده کړو ترحنګ يو عالم يا طالب ته د ديني زده کړو ترڅنګ عصري زده کړې څومره اړينې دي.

شيخ صاحب: د عصري علومو په اړه به دومره درته و وايم چې بايد د خادم په حيث حاصل شي او د علم او دين خدمت پرې وکړي، خو داسې نه چې پرې اصل مطلوب پاتې شي او فقط د دنيا د حصول ذريعه وګرځول شي.

والسلام عليکم

استودع الله دينکم و دنياکم و خواتيم اعمالکم



# تر امریکایي غلبیل وتلي حشرات

احسان ـ عامر

د دنیا هر قوم او هیواد ځان ته ځانګړي اجتماعي او انفرادي اصول او مقررات لري، هر څه د تقسیم الاوقات له مخې پر مخ وړي. هیواد کې دننه او هیواد نه بهر خلکو سره د تعامل او رویې لپاره خپله کړنلاره، ټاکلی ځای او وخت لري.

نړۍ له یوه مخه په دیپلوماتیکي، سیاسي، تجارتي، ترافیکي او....... برخو کې خپل حدود او سرې کرښې Red lines لري، چې د هغوی له مخې خپل شخصي ـ او سیاسي واک، خپل حیثیت او خپله ځمکنۍ بشپړتیا تکمیلوي.

انسان خو څه، هیڅ ژوندی هم چا ته پر شخصي حریم د یرغل اجازه نه ورکوي او نه پریږدي چې څوک یې د میزاج او دستور خلاف کوم اقدام ته زړه ښه کړي. همدا اصول او سرې کرښې دي چې د شخړو او پېښو په له مینځه وړلو کې پراخه ونډه لري.

البته تنها ارګ او پکې د سي آی اې تر امریکایي غلبېل وتلي اجیر حشرات دي چې د نړۍ برعکس او د عقل خلاف بې له کومې کړنلارې او اختیار لکه روبوټونه غیر ارادي تګ او عمل تر سره کوي.

نوره نړۍ کې سفارتونه یواځې د دوو هیوادونو تر مینځ د دیپلوماتیکي روابطو دنده انجاموي او بس، نور نو نه شي کولای چې د کور به هیواد د خارجه وزارت له لوري ورته ایستل شوې سرې کرښې دې ماتې کړي، خو د کابل إداره کې بیا ژرنده چپه روانه ده، د دې إدارې د مشر ـ دفتر یا پایتخت د امریکا د سفارت په إشاره خپلې ټولې چارې پر مخ وړي، او دا سفارت ورته وخت پر وخت سرې کرښې باسي.

د کابل إدارې چارواکي غریبان که هر څومره په ډېر ټینګار سره ووایي: ټاکننې او... دا زموږ سرې کرښې دي او په هیڅ قیمت ترې تېر نه یو، دوی خبر نه وي چې امریکا د خپلو ګټو په تعقیب د دوی سرې کرښې په خپل رنګ ورنګوي، کله یې جانکیرې چوکۍ ورته د غرور په چاړه لکه هندوانه دوه ځایه کړي او د ټولې نړۍ د اصولو خلاف ورته یو بې سابقې دوه سرى نظام جوړ کړي.

کله د یادې إدارې د مشر د حیثیت سرې کرښې د امریکا د سفارت له لوري په نیمی شپه په بل رنګ شي او ماتې ښې، نوموړی دې ته اړ شي تر څو د خپل بادار مخته بې له کوم حفاظتي ګارد نه لکه ادنی عسکر باګرام ته إحضار شي.

کله ورته پر مډال سر بېره د امریکا سفیر جانباس د دې لپاره سترګې برګوي چې ټاکنې ما کنې نشته شابه یو مشترک حکومت جوړ کړئ او داسې نور........

امریکا د خپلو ناروا مو د تحقق لپاره له یرغل سره هم مهال د افغانستان پر خاوره څو کرایه شوې څېرې او کرایه شوې رسنۍ د دې لپاره راوتپلې، تر څو دوی ورنه جګړه کې د یوې آلې او سپر غوندې کار واخلي، رسنۍ یې د ډالري بوجیو په مټ دې ته وګومارلې چې دلته خلکو ته خپل نوکران اتلان ور وپیژني او د خلکو فکري إنحراف ته شپه او ورځ یوه کړي ، دلته د غرب شیطاني خود ساخته قانون دالهي قانون پر ځای په خلکو تسلیم کړي او.......

امریکایي رسنیو هم د جورنالیزم د ټولو قوانینو خلاف د افغان ولس د روا مقاومت پر ضد او د إشغال په ملاتړ زهري

نشرات جاري وساتل، خلکو ته يې تور په سپين، زهر په گبين تېر کړل، کله به يې د ټول ټاکنو په نوم د ملت سترگو ته د دې لپاره خاورې و پاشلې چې گواکې دا نظام ستاسو په خوښه او يو مستقل نظام دی، او تاسو له خپل ورور او خپل نظام سره څنگه جگړه کوئ؟ او کله به يې بيا نورې بهانې لټولې خو ټولې حربې يې لله الحمد يوه په بله پسې د الله تعالی په نصرت رسوا او له کاره لوېدلې.

إسلامي إمارت چې له ړومبۍ ورځې د إشغالگرو پر خلاف د جهاد رغ پورته کړ، له هغې ورځې تر نن پورې پر هغه خبره ولاړ دی او وايي:

دلته هرڅه د امريکا په واک کې دي، د کابل إداره يوه نوکره إداره ده، نه د هيڅ وړتيا لري او نه د هيڅ إختيار، دوی چې خوراک او څښاک، اسلحه او خرچه او..... يې امريکا ورکوي بيا به څنگه د امريکا له نظر نه يو اينچ په بل طرف واوړي؟!

کيدای شي له مور سره به ډېرو دا خبره نه منله او له رسنيو نه په تأثر د ډېرو خلکو زړونو ته به دا خبره ورتېره وه چې رښتيا به هم دلته ولسواکي او يوه مستقيم إداره موجوده وي، دا چې حق لکه ځلاند ستوری نه پټېږي، په تکه توره تاريکه کې ځان را څرگندوي او لاروي تر خپل هدفه رهبري کوي. حق وخت پر وخت د کابل إدارې د يو شمېر مخکښو چارواکو په خوله ځان را څرگند کړ، هغوی اقرار کوي: امريکا مور د پيپسۍ د بوتل په څېر کاروي او له گټې اخيستلو وروسته يې چې خوښه شي هغه کثافات دانۍ ته مو غور ځوي....

همدا رنگه د کابل إدارې پخواني مشر او د امريکا زاړه يار (حامد کرزي) واشنټن پسټ سره مرکه کې ومنله او زياته يې کړه:

زه دې پايلې ته ورسېدم چې د امريکا لخوا يوازې "د يوې آلې په حيث" کارول کېدم، نوموړي زياته کړه: نه په ۲۰۰۹ کال کې، نه په ۲۰۱۴ او نه تيرې ټاکنې زمور په لاس کې وې- دا د پردو د معاملې سلسله ده.

دوی په خپلو څرگندونو سره د إسلامي إمارت پر هغه خبره د تائد مهر ولگاوه چې ويل يې: د کابل إداره يوه غلامه او لاس پوڅې إداره، د کابل إدارې چارواکو په خپله خوله نړۍ او هيواد ته ثابته کړه چې دا بې وسه إداره نه د دې لياقت لري چې څوک ورسره د صلحې خبرې وکړي او نه د دې وړتيا لري چې څوک يې د يوې مستقلې إدارې په نوم و پېژني.

## دعبرت څو ټکي

دعثماني خليفه سلطان سليمان القانوني رحمه الله د وخت مشهور عالم يحيى افندي ته وليکل: د يوه دولت د نړيدلو او له منځه تللو اسباب څه دي؟

هغه په ځواب کې ورته وليکل: ښاغلی سلطان زما له دې سره کار نشته.

سلطان سليمان القانوني ددغه لوی شخصيت او ويښ عالم په دې نيمگړي ځواب هک حيران شو او پخپله يې هغه ته د ورتگ پريکړه وکړه، چې هلته ورغی خپله پوښتنه يې تکرار کړه او ورته ويې ويل: زما پوښتنه جدي ده، تاسو بايد مناسب ځواب راکړئ، په دې سره علامه يحيى افندي رحمه الله لاندې ځواب ورکړ.

ښاغلی سلطان! کله چې په کوم هيواد کې ظلم عام شي او په هر شي کې فساد رامنځته شي. او هر څوک چې دا ظلم او فساد ويني وايي: زما يې پرې څه او هر څوک پخپل ځان بوخت وي، نو چې شپانه پخپله د مېږو په داړلو بوخت شي، د غريبانو او مظلومانو چيغې او ژړاگانې آسمان ته پورته شي او له کاڼو او بوټو پرته يې د اوريدلو بل څوک نه وي؛ دا مهال د دولت مراندې غړانده او مخ پر نړيدلو شي. دا مهال د دولت خزانې غله ولوټي، پر دولت د ولس باور ختم شي او د قانون منلو ته زړونه نه ښه کوي، په دې وخت کې د دولت له منځه تلل يقيني شي.

# دوو میاشتو کې پوره هیواد مسلمان شو!

سیف الذهبي



مالدیپ بحر هند کې یو سیاحتي هیواد دی، دا هیواد پر ۱۱۹۲ جزیرو مشتمل دی، چې صرف پر ۲۰۰ جزیرو یې خلگ اوسي.

مالدیپ کې ۱۰۰٪ فیصده خلگ مسلمانان دي، د دغه هیواد تابیعت خپلولو کې دا لومړی شرط دی چې یاد کس به مسلمان وي.

مالدیپ د بده مت د پیروکارانو وطن و چې په دوو میاشتو کې ټول که باچا و که عوام ټول مسلمانان شوه.

خو دا کار څنگه او کله وشو؟

دا واقعه مشهوره سیاح ابن بطوطه د مالدیپ د سیاحت وخت کې په خپل سفرنامه کتاب کې لیکلې ده، ابن بطوطه تر یو وخته هلته قاضي هم پاته سوی دی.

هغه په خپل کتاب " تحفة النظار في غرائب الامصار وعجائب الامصار" کې لیکي:

چې د مالدیپ خلگ د بت مت لارویان وه، او سخت بد پاله هم وه، چې د دې بد عقیدگی په وجه پر هغوی یو عفریت (پیری) مسلط و، عفریت به د میاشتې اخیر کې د سمندر د یو اړخ نه د روشنیانو سره راوتی او بیا به د هغه ځای خلگو دته دا وخت کې یو ځوانه پیغله یو کوټه کې پرېښودل چې سهار به هغه مړه وه نو بیا به دوی هغه سوځل.

او د عفریت لپاره به د پیغلې انتخاب پر قرعه اندازۍ کیدی، چې دا ځل د یوې کونډې بوډۍ د لور نوم راووتی، بوډۍ چغې کړې تر دې چې د سیمې خلگ او نور مسافر هم راغله او په خبره یې خبر شوه ټول سترې وه چې د عفریت دا ظلمونه نه ختمیږي.

تر دې چې یو مسافر رالی او سپین سرې ته یې ډاډ ورکړ چې خیر مه خفه کیږې، داسې وکړه چې ستا د لور پر ځای نن شپه ما هغې کوټې کې کښینوه، کوم ته چې عفریت پیری راځي، خلگ ورخطاء هم شوه، او ویریدل هم چې هسې نه عفریت ټول ختم کړي خو د مرگ خولې ته ورغلی ولې وویریږي؟

تر دې چې د مسافر سره یې ومنل مسافر اودس وکړ قرآن یې راواخیستی تلاوت یې پیل کړ نه هغه شپه عفریت رالی، نه بل وخت دا یې اخیري ځل و.

سهار خلگ راله چې اوس به د مسافر مړ جسد راواخلي او اور به ورکړي خو چې وه یې کتل هغه جوړ روغ دی.

پوهیږئ دا مسافر څوک دی؟

دا مسافر مشهوره داعي مبلغ سیاح ابو البرکاة بربري و، د شیخ دا واقعه ټول هیواد کې د اور په څېر ورسیدی، تر دې چې باچا راوه غوښتی ابو البرکاة باچا ته د اسلام بلنه ورکړه هغه ومنل تر دې چې ټول مالدیپ دوو میاشتو کې د اسلام په خوږ دین اباد شو.

۱۳۱٤ء کې دا واقعه هلته وشوه، او شیخ هلته درسونه پیل کړه په زرهاو مسجدونه یې آباد کړه تر دې چې هلته مړ شو او هلته یې پټ کړ.

مقصد د خبرې دا دی چې دی یو کس و خو د پوره ملت کار یې وکړ نن سباء هم داسې کار کیدای شي.

# اور بلوونکی مارغه...!!

موسی فرهاد



«الحدأة» په عربي کې د هغه مرغه نوم دی، چې په حدیث شریف کې یې د وژلو امر شوی، دا مرغه په شکل کې باز/شاهین ته ورته دی خو باز نه دی، په پښتو کې به غالباً ورته پتنګ ویل کیږي.

دا یو له هغو پنځو شیانو څخه دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم یې حتی د احرام په حالت کې، د حرم په حدودو کې هم د وژلو هدایت کړی. دا پنځه واړه یې فواسق حشرات او موذي الوتونکي ګڼلي دي.

له عایشې رضی الله تعالی عنها څخه روایت دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : "خمس من الدواب كلهن فواسق، يُقتلن في الحرم: الغراب، والحدأة، والعقرب، والفأرة والكلب العقور".

یعني پنځه له ځارویو (او الوتونکو) څخه ټول فواسق (اذیت رسوونکي) دي، دوی دې ووژل شي، که څه هم په حرم کې وي، (هغه پنځه واړه دا دي:) کارګه، پتنګ، لړم، موږک او داړونکی سپی.

په نورو احادیثو کې په تکرار سره دا صراحتونه موجود دي چې نبی علیه السلام خپل امتیان دې متوجه کړي چې پر حیواناتو دې ظلم نه کوي، د رحم او شفقت معامله دې ورسره کوي. خو ځیني وختونه یې بیا ځینې ژوي په دې شکل مثتنی کړي چې هغوی حتی ووژنئ.

دا ځکه چې په اسلام کې اصولي قاعده دا ده چې د امر او نهي دواړو مثبت او منفي مفاد د بنده له ګټې سره اړه لري، یعني له یو شي نه چې شارع علیه السلام منع فرمایلي او یا یې په یو شي د عمل امر کړی وي؛ په هغه کې نفع او نقصان یوازې د بندګانو مد نظر وي، نه د الله پاک. ځکه چې الله تعالی دې ته اړتیا نلري چې د مخلوق شر او خیر دې ده ته نقصان یا ګټه ورسوي.

نو مقصد دا دی چې نبی علیه السلام ۱۴ سوه کاله وړاندې د دې پنځو شیانو د وژلو لارښوونه کړې، که څه هم حکمت یې په واضحه توګه نه دی څرګند کړی، خو دومره یې فرمایلي چې دا شیان انسانانو ته ضرر رسوونکی مخلوقات دي.

دا چې د لړم او سپي اضرار ښکاره دي، خو د کارګه، موږک او پتنګ ضرر مو‌ږ او تاسو ته تراوسه دېر نه دی واضح شوی، او مؤمنان په دې مکلف هم نه دي چې له حکمت معلومولو وروسته به د شرعي حکم تابعداري کوي، بلکې پرته له پلټلو به یې مني.

خو لویدیځوال ساینس پوهان همیشه په دې هڅه کې وي چې په اسلام کې د اوامرو او نواهیو ترشا فلسفه وپلټي او مالومه کړي، بیا چې وروسته ایمان راوړي کنه، دا بیا بېله خبره ده.

دوی وخت پر وخت ځیني شیان ځان ته مالوم کړي هم دي. لکه د بیلګې په توګه د الحدأة په نوم د مرغه د وژلو فلسفه چې اوس تازه راڅرګنده شوې.

د استرالیا په ځنګلونو کې هرکال اورونه بلیږي، او لویه تباهي رامنځ ته کوي، ساینس پوهانو یې د علت معلومولو وروسته کشف کړي چې دا اور د همدې (الحدأة) مرغه له وجې بلیږي.

وای د دې مرغه خاصیت دا دی، هر چیرې چې لږ اور پیدا کړي، بیا د یو خلي په وسیله د پیلوزي په شکل اور تري را اخلي بل ځای چې وچ واښه وي او اور نه وي ور رسیدلی؛ هلته یې غورځوي، ترڅو هغه ځای هم اور واخلي، بس همدا یې کار وي ټوله ورځ څومره چې اور پراخیږي دا مرغان یې زیاتوي.

ساینس پوهان وایي چې دوی ځکه اور بلوي چې هلته په ځنګله کې پټ واړه حشرات لکه موږکان، ماران، لړمان او نور داسي شیان د اور له وجې له خپلو غارونو راوځي په دې وخت

کې دا مرغان د هغوی ښکار کوي. او یا نور غټ حیوانات چې وژل کیږي دوی یې خوري.

ویل کیږي چې هرکال د استرالیا د سوانا په نوم پراخه ځنګلي سیمه کې وخت پروخت اورونه لګیږي، په دې شپو ورځو کې هم اور بل دی چې تراوسه یې نږدې ۷۰٪ سلنه ځمکه نیولې ده.

استرالیایی ژوی پیژندونکي باب ګوسفورډ، د تازه بل شوي اور په اړه ګرندی پلټنې پیل کړي چې تراوسه یې ۲۰ داسې شواهد را یوځای کړي چې د الحدأة په نوم دا مرغه په خپله مچوکه کې داسې یو خلی چې یو طرف یې اور اخیستی وي؛ را اخلي بل ځای ته یې انتقالوي او هلته یې پر وچو لرګو یا وابښو غورځوي، او هلته هم اور بلیږي.

له دې نه څرګنده شوه چې دا څومره ضرري مرغه دی، او نبي علیه السلام یې څوارلس سوه کاله وړاندې د وژلو امر کړی، هغه یې د انسانانو لپاره ضرر رسوونکی مخلوق بللی دی.

نو پکار ده چې نه یوازې مؤمنان، بلکې ټول نا مسلمان وګړي هم د اسلامي شریعت پر لویو او وړو ټولو احکامو او د نبي علیه السلام پر فرموداتو د زړه له تله کلک باور ولري. چې دا یو برحق دین او برحق وروستی پیغمبر دی. صلی الله علیه وسلم

پای ...!

# پردی مال او د ابودجانه رضي الله عنه تقوا

ابو دجانه عادت درلود کله به چې یې د سهارلمونځ رسول الله پسې ادا کړي. خو کله به چې لمونځ خلاص شو په تلوار به له جوماته واته. رسول الله د ابو دجانه دغه عمل ته متوجه شو او یوه ورځ یې ترې وپوښتل: ای ابودجانه ته د الله تعالی څخه دڅه غوښتلو اړتیا نه لرې؟

ابودجانه وویل: ولې نه یوه شېبه هم ترې بې غوره کېږم نه. رسول الله و فرمایل: نو بیا ولې نه تم کېږې، چې زموږ سره لمونځ یو ځای پای ته ورسوې او له الله تعالی څخه هغه څه وغواړې، چې ورته اړتیا لرې؟

ابو دجانه وویل: سبب یې دا دی، چې زه یو ګاونډی لرم هغه یهودي دی او د هغه د خرما ونې شاخونه زما دکور حولۍ ته را اوښتي دي او کله چې د شپې باد ولږېږي د خرما ځینې دانې زموږ کور کې ولوېږي. نو ځکه دجومات څخه په تلواروځم، تر څو هغه د خرما دانې ټولې او بېرته یې د یهودي کور ته ورواچوم. وړاندې له دې چې زما اولادونه له خوبه را ویښ شي او وږي وي او هغه وخوري،

او زه درته قسم خورم یا رسول الله!، چې یوه ورځ زما له اولادونو څخه یوه خرما ژوله هغه مې د هغه له حلقه وړاندې له دې چې هغه تېره کړي راویسته او کله چې هغه وژړل ورته مې وویل: ته نه شرمېږې، چې پلار دې دالله تعالی په وړاندې د غله په توګه ودرېږي؟

او کله چې ابوبکر هغه څه چې ابو دجانه وویل واورېدل د یهودي څخه هغه د خرما ونه وپلورله او هغه یې ابو دجانه او اولادونو ته هبه کړه ، کله چې یهودي له دې حقیقته خبر شو، ټول اولادونه یې راټول کړل اورسول الله ته ورغي او خپل اسلام یې اعلان کړ.

ابو دجانه ډاربېده، چې اولاد یې د هغه چا حق و نه خوري، چې مسلمان هم نه دی!. خو تعجب دی چې نن داسې مسلمانان زښت زیات دي، چې د خلکو مال په ناروا خوری، رشوت اخلي، رشوت ورکوي، غصب کوي، د یتیم او کونډې مال خوري، د فاسد او خاین ملګرتیا کوي، د نوم او شهرت لپاره هره ناروا کوي او هغه ته هوښیاري (درآمد) نوم هم ورکوي او ځان هم تر ټولو غوره مسلمان ګڼي.. وای په حال د داسې خلکو، دوی په حقیقت کې ځان غولوي خو خدای نه شي غولولي!



# د مجاهد اخلاق
# او د ارزښتونو ساتنه

ژباړه او لنډون: عبد الله

د فرد اصلاح کول ، غوره ټولنه او چاپېریال په رباني تګلاره برابرول او د ارزښتونو، فضیلتونو راوستل د محمدي دین او رسالت تر ټولو ستر اهداف دي، داسې ټولنه چې له رذائلو او بد اخلاقیو لرې ساتل کیږي، د هغې ځخه هدف دا وي، چې په دوی کې قائد او خلیفه وي، غوره امت او رعیت جوړ شي، دغسې ټولنه کې محبت، الفت، وروروللي وي، فرد د ټولنې مصلحت ته پام وکړي او ټولنه د فرد مصلحت ته پاملرنه وکړي. په یو داسې توازن، دسپلین ، بشپړوالي سره حیات او ژوند وي چې هر لوري ته سعادت او نیکبختي راوړي، او بهترینه ټولنه او غوره امت ایجاد شي، دغسې ټولنه چې ډېر مصلحین او مفکرین یې له ډېره وخته خوبونه ویني او د خیالاتو په نړۍ کې پسې لا لهانده وي؛ په واقعیت او عمل کې نه راځي ، دوی یواځې د قرآني تربیې او د نبوي قیادت په سوري کې جوړولای شي.

نو اسلامي امت، یوه خېل یوه ډله، یو جګړماره فرقه نه ده چې خپل فکر ، علاقات او نظام په زور او عقایدي دبدې پر بنسټ په خلکو ومني بلکې دا په اسلامي مفهوم کې یو داسې پروسه ده، چې پرمختګ او انساني مدنیت ته لاره هواروي او انسان ته په ځمکه کې دخلیفه جوړېدلو معنی پکې نغښتې ده، همدا د انسان لپاره د خیر او ښېګڼې او دتمدن مفهوم دی چې په واقع کې باید ایجاد شي .

موږ دلته د دکتور فاطمه عمر له کتاب (الأخلاق في المیزان) له کتاب څخه د (اخلاقو) ځیني مفاهیم را اخلو چې تر جهاد پورې تړلې دي،بیا د مجاهد اخلاق او اخلاقي ارزښتونه یادونه کوو؟

په اسلامي ټولنه کې جهاد هم یو له مهمو اخلاقي ارزښتونو څخه دي، څنګه چې جهاد ته د اسلام لوړه څوکه ویل شوې، دغسې د اخلاقو لوړ ځلی هم ګڼلی شي، د الله تعالی په لاره کې ربښتینی مجاهد حقیقي ایمان موږ ته راپېژني، مجاهد غوره نمونه ده چې په اخلاقو او ایمانداری کې دده په پل، باید پل کیښودل شي، مجاهد د اعلاء کلمة الله لپاره په خپل ځان، روح او مال جهاد کوي، چې دې سره نوموړی د مکارمو او غوره اخلاقو ساتندوی او ددین چوکیدار ګڼل کیږي.

قال تعالی: (إن الله اشترى من المؤمنين أنفسهم وأموالهم بأن لهم الجنّة يقاتلون في سبيل الله فيقتلون ويُقتلون وعدا عليه حقّا في التوراة والإنجيل والقرآن ومن أوفى بعهده من الله فاستبشروا ببيعكم الذي بايعتم به وذلك هو الفوز العظيم ـ التوبة: ۱۱۱).

حقیقت دادی چې الله تعالی له مومنانو څخه د هغوی نفسونه او دهغوی مالونه د جنت په بدله کې اخیستي. هغوی د الله تعالی په لار کې جنګیږي، نو وژل کوي او وژل کیږي، له هغو سره په تورات ، انجیل او قرآن کې د جنت وعده) د الله تعالی پر ذمه باندې یوه کلکه پخه وعده ده او څوک دی چې الله څخه زیات د خپلې ژمنې پوره کوونکی وي. نو خوښ اوسئ په خپلې دغې سودا چې د خدای سره مو کړې ده، همدا تر ټولو ستر بریالیتوب دی.

چـا چـې دا بیعـت درلـود او وفـاداري یـې وښـودله ، همـدی رښـتیني او حقیقـي مـومن دی او د ایمـان حقیقـت او جـوهر پکـې دواړه تمثیلیږي.

نـو د اللـه تعـالی وعـده پـدې باندې ده چې جنت بـه ورکوي او د اللـه پـه لاره کې د جهـاد پـه اصـالت باندې دلالت کـوي او جهـاد د ربـاني مـنهج او تګـلارې سـره سـم د اللـه تعـالی ددیـــن د ســـاتلو، ددیـــن چوکیـداري، د اســلام خپرولــو ، د اخلاقـي ارزښـتونو سـاتلو یـوه غـوره وسیله ده.

(ولولا دفع الله الناس بعضـهم ببعض لفسدت الأرض ولكن الله ذو فضلٍ على العـالمين) (البقـرة: الآيـة ۲۵۱).

که دغه شان اللـه تعـالی د یـوې ډلې مخنیوی په بلې ډلی نه کولای نو د ځمکې نظام بـه ګـډوډ شـوی وای؛ خو پر نړیوالو دالله تعالی لوی فضـل دی چـې هغـه پـه دغـه ډول د فسـاد دمخنیوي لارې چارې برابروي).

**د الله تعالی غوره بندګان:**

د جهاد دغه بیعت چې چا هـم کـړی وي او خپـل ځـان یـې پـه دغـه عقد کې الله تعالی سره منعقـد کـړی وي، هغوی د الله تعالی غوره بنـدګان دي.

همـدا د ایمـان وروسـتی څوکـه ده چـې پـه لـوړو اخلاقـو او صـفاتو سـمبال وي، کـوم چـې د بیعـت آیـت پسـې راتلـونکی آیـت یـې مـوږ تـه

راښیي، البته ځینې صفات یواځې په شخص پورې ذاتي اړه لري چې نوموړی پـه کومـو شیانو کې شعور او حس لري، خپل ذاتي تعامل به یې الله تعالی سره څنګه وي؟

او ځینې نور بیا ده ته دورسپارل شوي مسئولیت پـه توګـه دده مکلفیـت وي، چې هغه بیا دوی پورې ذاتي اړه نه لري بلکې بهرنـه وربانـدې راغلـي وي او ددیـن سـاتنه او خپرول دي، لکه : امر بالمعروف دی، نهي عن المنكر ، د الله تعالی حدود په خپل ځان او نور کې راوستل؛ دا ټول په لاندې ایت کې راجمع دي:

(التائبون العابدون الحامدون السائحون الراكعون الساجدون الآمـرون بـالمعروف والناهون عن المُنكر والحافظون لحدود الله وبشّر المؤمنين ـ التوبة: ۱۱۲).

د الله تعالی لوري ته بیا بیا رجوع کـوونکي، د هغـه بنـدګي پـه ځـای راوړونکي، د هغه ثنا او ستاینه ویونکي، دهغه پـه خـاطر پـه ځمکـه کې ګرځېدونکي راګرځیـدونکي، دهغـه پـه وړانـدې رکـوع او سـجده کـوونکي، پـه نیکـۍ حکـم کـوونکي، لـه بـدۍ منعـه کوونکي او دالله تعالی د حدودو ساتونکي دي، (هغه مؤمنان همدغه شـان وي چـې لـه الله سره د راکړې، ورکړې دا معامله سرته رسوی). [اې پیغمبر ص! ] دغـه مؤمنـانو تـه زیرې ورکړه.

جهاد یواځې له دین څخه دفاع او قتال نه دی، هغه د ایمـان یـو داسـې لـوړه مرتبـه ده چې د خلکو په احساساتو او شعائرو اخلاقو او اعمالو پر بنسټ ولاړه ده.

هغه مؤمنان چې الله تعالی ورسره بیعت کړی او حقیقي ایمان پکې راڅرګنـدیږي، دغه صفات ورسره لازم دي، په دوی کې چې کـوم ایمـاني او خلقـي صـفات را ښـکاره کیږي، هغه په لاندې توګه دي:

۱ـ **التائبون :** (توبـه کـوونکي) دوی اللـه تعـالی څخـه مغفـرت غوښـتونکي او پـه سخته کې ورګرځیدونکي دي.

۲ـ **العابدون:** (الله تعالی ته پـه بنـدګۍ تسلیمیدونکي) یـواځې اللـه تعـالی تـه پـه عملي او واقعي شکل په عبادت او عبودیت توجـه کـوونکي وي او پـه دوی کې ژور اثـر لري ؛ په هرقول او عمل دواړو کې یې توجه الله تعالی ته وي.

۳ـ **الحامدون:** داسې ځانګړنه ده چې د انسان په زړه کې د الله تعـالی پـه نعمتونـو اعتراف ، په پټه او ښکاره په ژبه ستاینه وي.

۴ـ **السائحون:** پدې کې اختلاف دی، څوک یې د الله تعـالی پـه لاره کې هجـرت کوونکي بولي، څوک یې د الله تعالی په لاره کې جهـاد کـوونکي، ځینې یـې د علـم پـه تلاش کې وتونکي ګڼي او چا ویلي چې: دوی د اللـه تعـالی پـه مخلوقـاتو کې تفکـر او تدبر کوونکي دي.

۵ـ **الراكعون الساجدون:** (رکوع او سجده کوونکي) هغه چې لمونځ کوي او دغه لمونځ د ځان لپاره لازم صفت ګڼي لکه د دوی لپاره چې په طبعیت کې یـواځې رکـوع او سجده له نورو خلکو سره، توپیروونکی صفت وي.

۶- الآمـــرون بـــالمعروف والنـاهون عـن المنكـر: (پـه نیکـي حکـــم کـــوونکي او لـــه بـــدو راګرځوونکي) دا د هغه چا ځانګړنې دي چــې د ټــولنې ســاتندويان وي، دالله تعالی په قانون او چوکاټ برابره ټولنه او ساتنه لازمه ګڼي؛ همدا غوره مخلوق دی.

۷- الحــافظون لحـدود اللــه (دالله تعالی د حـدودو سـاتونکي) دا هغـه خلـک دي چـې د اللـه تعـالی حدود خپل ځان او ټولنه کې عملي کوي، دوی د اسلامي شریعت د پلي کولـو لپـاره صـالحان او مصـلحین دواړه وي.

همدا همغـه مؤمنـه ډلـه ده چې الله تعالی ورسره ژمنه کـړې، همدغـه یې ځانګړنې دي چې پـه تـوبې سـره الله تعالی تـه نـږدې کیـږي او لـه ګناه یـې ګرځـوي، عبـادت طـرف تـه یـې بیـایي او عبـادت یـې د خپـل معبـود سـره وصـل راولـي، بيـا د اللـه تعـالی ستاینه هم په پټه او ښکاره کوي، اللـه تعالی ته د بشپړ ځـان سپارلو نتیجه ګرځـي او د هغـه پـه رحـم او عـدل مطلق باور لري.

## جګـړه د ارزښـتونو سـاتلو لپاره:

کـه اسـلام قتـال (جګـړه) روا کـــړې، نـــو دا یـــې د فضـــیلتونو او ارزښتونو ساتنې لپاره روا ګرځـولې، د اسلام د خپرولو او دعوت، د سرکښو او بغاتو دمخنیوي لپاره او د جاهلیت له بد اخلاقیو او تیارو څخـه د آزادۍ لپاره او د ظلم څخه دنجات لپاره یې روا کړې.

که رسول الله صلی الله علیه وسلم د نیکو اخلاقو او دین بشپړولو لپاره راغلی نـو الله تعالی د خپلو لښکرو او د دین سپاهیانو لپاره اخلاقي ارزښتونه هم په پام کې نیولي، دوی ددې لپاره جګړه کوي چې د دین ساتنه او اخلاقي ارزښتونه پلي کړي

علماء وايي: د پیغمبر صلی الله وسلم تر وفاته پورې چې کوم غزوات او سـرایاوې شوي، ټولې ۲۷ غزوې او ۴۷ سرایاوې کیږي، د صحابه و او مشرکینو دواړو خـواوو نـه د وژل شویو شمېره په ۱۲۰۰ نه اوړي؛ تر ټولو جالبه داده چې په دغه جنګونـو کـې يـوه ښځه، يو ماشوم او يا يو بوډا نه دی وژل شوی، اسلام راغلی ددې لپاره دی چې ظلـم، وحشت، تیاره او عداوت ختم کړي؛ مینه، ورورولي، مؤاخاة او دوستي قائمه کړي.

که اسلام جګړه روا کړې خو اسلام د رحمت یو داسې چوکـاټ ورتـه وضـع کـړی چې د شلمې پېړۍ مدنیت ورته نشي رسیدای.

اسلام داسې احکام جاري کړي او د هغې مراعاتول یې واجب ګڼلي چې د قتـال او جګړې احتمال راکم کړي.

په انسان د ترحم کولو ترټولو غوره قوانین په اسلام کې دي او دغه قوانین نن مـوږ تاسې وینو چې دولتي قوانین ورسره ډېری مواضعو کې سمون خوري مګر مخالفت یـې ورسره یوائې پـه دې دی چې دیني احکـام دي، اللـه تعـالی وضـعه کـړي او د مسـلمان ایمان یې په ځان کې راولي. خو دولتي قوانین هیڅ مرجع او سـرچینه نـه لـري، د خلکـو په خوښه او د هغوی لخوا راوړل شوي او وضـع شـوي دي، نافـذوونکي قـوت نـه لـري چې د هغې تائید وکړي.

الله تعالی فرمایي : (وقاتلوا في سبیل الله الـذین یقـاتلونکم ولا تعتـدوا إن اللـه لا یُحب المُعتدین ـ البقرة: ۱۹۰)

او تاسې د الله تعالی په لاره کې له هغو کسانو سـره وجنګیـږئ چې ستاسـې سـره جنګیږي، خو تېری مه کوئ چې الله تعالی تېري کوونکي نه خوښوي.

دغه آیت د مسلمانانو تګلاره او نقشه په جهاد سره ښیي او دنـه تیـري لپـاره غـوره وسیله جهاد دی، د مسلمانانو جګړه پداسې دوو لویـو ارزښـتونو او جوړښـتونو ولاړه ده چې ....د نن عصر ستر تمدنونه ورته ضرورت لري.

## لومړی: په جنګ کې عدل او ترحم :

جګړه هغه چا سره ده چې جګـړه کـوي، تېری کـوي، ښـځې، ماشـومان او سـپین ږیري به نه پکې وژل کیږي، ځکه چې دوی جګړه نه ده کړې او نه یـې تجـاوز کـړی، نـو نبي علیه السلام به هم چې کله د لښکر امیـر تـه لارښـوونه کولـه نـو ورتـه ویـل بـه یـې : «اغزوا باسم الله في سبیل الله قاتلوا من کفر بالله، اغزوا ولا تغلوا ولا تمثلوا ولا تقتلـوا ولیدا».

د الله تعالی په لاره کې د الله په نامه غزا وکړئ، جنګ له هغوی سره وکړئ چې کافر وي ، جنګ وکړئ خو غلُو پکې مه کوئ نه به د چا مثله کوئ، او مه ماشومان وژنئ!

امام نووي رحمه الله فرمايي : د حديث په دغو کلماتو کې ډېرې فايدې نغښتې دي، پدې سره غدر کول حرام دی، په جنګ کې شدت کول، د کوچنيانو وژل، که يې جګړه نه کوله، د مثلې کراهت راځي او دوی په جنګ کولو کې څه ته ضرورت لري؟ څه بايد وکړي او څه ورباندې حرام او مکروه دي او کوم يې مستحب دي دا ټول ذکر دی.

په همدې ډول څلورو واړو خلفاء راشدينو رضي الله عنهم هم دپيغمبر صلی الله عليه وسلم په تګلاره مزل کاوه، څنګه چې ابوبکر صديق رضي الله عنه اسامه بن زيد رض ته، د شام له تګ دمخه وصيت کاوه، پدې وينا سره چې: «لا تخونوا ولا تغلوا ولا تغدروا ولا تمثلوا ولا تقتلوا طفلا صغيرا ولا شيخا کبيرا ولا امرأة ولا تتلفوا نخلا، ولا تحرقوه ولا تقطعوا شجرة مثمرة ولا تذبحوا شاة ولا بقرة ولا بعيرا الا لمأکلة، وسوف تمرون بأقوام قد فرغوا انفسهم في الصوامع فدعوهم وما فرغوا انفسهم له ...الخ. »

خيانت، غلو (افراط)، غدر، مثله مه کوئ! کوچني ماشومان او بوډاګان مه وژنئ، ښځې مه وژنئ؛ ونې مه وهئ، مه يې سوځوئ او ميوه لرونکي ونې مه پرې کوئ ؛ ګډې ، غواګانې او اوښان مه وژنئ مګر که د خوراک لپاره و، او په نږدې وخت کې به تاسې داسې قومونو باندې ور شئ چې ځانونه به يې عبادتخانو ته وقف کړي، دوی او عبادتخانې يې پريږدئ...

دا هغه جګړه ده چې انساني اخلاق او مبادئ پکې له منځه نه دي تللي او همدا يې واضح مثال دی، نو د مسلمان مجاهد لپاره غدر، خيانت، چل ول او له تړون کوونکو سره دوکه جائز نه دي، دغه راز په هيڅ حالت کې د وژلو پرمهال د چا مثله کول نه دي روا (مُثله د تعذيب په وخت د انسان پوزه، غوږونه او نور اندامونه پرې کولو ته وايي)دغه راز به د انسانيت له چوکاټه نه وزي چې په خپل زړه د يوچا څخه انتقام واخلي، که هر رنګه وي او زړه ورباندې يخ کړي اګر که يې دښمن هم وي، همدا اسلام دی چې موږ ته د لوړو اخلاقو لارښوونه کوي.

جهاد په اسلام کې ترټولو لوړه څوکه ده، او هغه د لوړو اخلاقو سرچينه ده، او مجاهد د رښتينولي او حقيقي ايمان يو الګو ده ، مجاهد د اخلاقو لوړ مثال کيدلای شي، چې خلک يې په نقش قدم لاړ شي.

## دويم : په وژنه کې نيکي او احسان :

په قتل کې نيکي کول، معنی دا چې د يو چا وژل، تعذيب او د مثلې په شکل نه وي، اسلام يې که وژل روا بولي؛ ځکه چې د حق په مقابل کې ولاړ دی، دالله تعالی دښمن دی، وژل يې ورته جائز دي، خو په احسنه طريقه به وي ، نه دا چې تعذيب شي او يا د الله تعالی لخوا ورکړي جسم تغيير او تشويه يې وشي. نبي عليه السلام صحابه و ته څه فرمايي:

«ان الله قد کتب الاحسان علی کل شيء فإذا قتلتم فأحسنوا القِتلة، واذا ذبحتم فأحسنوا الذبحة، وليحد احدکم شفرته وليرح ذبيحته». الله تعالی په هر څه کې احسان او نيکي لازمه کړې، که وژنئ، په نيک هيئت يې کوئ او که ذبحه مو کوله نو په نيکۍ سره يې ذبحه کړئ، له تاسې (که څوک ذبحه کوي) خامخا دې چاړه تېره کړي، او ذبيحه ته دې آرام (په تېره او د چاړې په چابک کشولو) سره ورکړي.

او د نبي صلی الله عليه وسلم دا خبره چې (فأحسنوا القِتلة! معنی دا چې حالت يې نيک کړئ، قِتله په زير سره دلته د هيئت او حالت په معنا دی) او د هر وژل کيدونکي لپاره راتلای شي؛ دغه نبوي حديث شريف د اسلام لپاره جامع اصل دی، داسې حديث دی چې په ترحم او مهرباني کولو ټينګار تر دې چې حيوان هم وي.

دغه حديث په «إنّ» شروع دی چې تاکيد لپاره دی او بيا ورپسې صراحت سره د الله لفظ راغلی، د مؤمن نفس الله تعالی څخه وويريږي او (کَتَبَ) لفظ په فرضيت، وجوب او لزوم باندې دلالت کوي، هرڅه کې بايد ترحم او نيکي وي د ګډ يا غوا تر ذبحې او حلالولو پورې له ځناور سره نيکي کول لازم دي، دا کلمات په نفس او ضمير

کې د عادت او عبادت په توګه د نیکۍ او مهربانۍ راوستلو باندې دلالت کوي، که عمل واجب وي او که مستحب وي، ځینې احادیث هم راغلي چې د ذبح پر وخت د ځناور سره د احسان معنی راپېژني، خلاصه داده چې ذبیحه باید د حلالې ځای ته په نرمۍ بوتلل شي، له رمې څخه لرې وي، او په ښې څنګ څملول وشي بیا د الله تعالی په نامه وروسته له هغې چې چاړه تېره وي او تېز کار وکړي، د انسان په غوره طریقه او اخلاقو او ترحم حلاله شي، نو مسلمان ژوندی احساس او نرم شعور ولري ، همدې ته احسان وايي، چې دا د اخلاقو او مدنیت او په اتقان کې تر ټولو لوړه پوړۍ ده، په کار کې د اتقان انتهائي اخري حد دی.

آیا مسلمانان نن سبا د دغو لوړو آدابو درک لري؟ آیا اخلاقي معامله له انسان او حیوان سره پرځان لازمه بولي؟ آیا د شلمې پېړۍ انسان د داسې آدابو التزام کړی؟

## د شلمې پېړۍ جګړې او د اخلاقي ارزښتونو پایمال:

په نړۍ کې د معاصرو کفارو وحشت او دهشت، انساني او اخلاقي حقوق بشپړ تر پښو لاندې کړل، دوی د اخلاقو او انسانیت په نامه څه نه پیژني، بلکې یواځې اوږده او غوړ توري او شعارات ورته لري، د اخلاقي تعامل لپاره کوم توازن نه لري، د دوی اوسني جنګونه دي، که پخواني، په زړو وسلو سمبال و او که په نوو ، ټول جنګونه یې له اخلاقي مفاهیمو او انساني اصولو څخه خالي دي، موږ ویلی شو چې په شلمه پېړۍ کې د تمدنونو جګړه د وحشت ، دهشت، بلوا چې د انسان عقل ورته حیران شي له وحشي ځناورو هم ور اړولې.

انسان د نن وخت په عصریتوب او تمدن کې داسې وسلې جوړې کړې چې کلي او ښارونه ؛ نسلونه او فصلونه؛ وچ او لامده ټول له منځه وړي، په اوبو کې کبان، په هوا کې مرغان، په ځمکه حیوان او انسان هم ټول وژني.

په دویمه نړیواله جګړه کې د دواړو خواو جګړه کوونکو شمېر پنځلس ملیونه او شپږسوه لکه، انسانان و، د وژل شویو شمېره په ۴۵۰ میلیون او ۶۰۰ لکه څخه اوړي.

په نني جګړو کې کوم تجاوز او تیری چې په عامو خلکو روان دی، دسړي غوني ورته زیږه شي، هغه اخلاق ، حضاریت او مدنیت کومه خوا ته لاړ چې د نني عصر فرعون یې دعوه لرله.

وژونکي او تخریبوونکي بمونه او وسلې په ټولو محرمو ډولونو سره نن سبا په بې ګناه او سوله ساتو ولسونو باندې وریږي، بغیر له خرابۍ او وژلو کوم څه دوی ته نه دي رسولي.

آیا په اسلام کې همداسې تمدن دی ؟! نه ، بلکل نه! د مسلمانانو اخلاق هغه دي چې په رحم، کرم، الفت او مهربانۍ ، عدل او نیکۍ له انسان او حیوان سره په سوله او جګړه کې یو ډول دي.

### د کاڼي کرښه!

یو ګیدړ په پنځوس متره اوچته غونډۍ ولاړ ؤ، لاندې په لاره زمرۍ تېریدو، ګیدړ یوه تیږه په لغته ووهله او د زمري مخې ته یې وغورځوله او بیا یې زمري ته په مغرور أنداز وویل: آشنا څنګه یې!؟

زمري ورته وویل: ستا دا مغرور أنداز ستا کمال نه دی، بلکې دا د دې پنځوس متره غونډۍ کمال دی چې ته یې رانه ساتلی یې.

نو دوه ورځې مخکې ولا دي میر پوهېین د صلاح الدین ایوبي رحمه الله قبر ته ورغلی ؤ، د پوهېین دا مغروره مسکا د پوهېین کمال نه دی، بلکې دا د هغو خاورو کمال دی چې د کومو لاندې صلاح الدین ایوبي رحمه الله پروت دی.



شهيد زوی

# د جنرال سليماني وژنه او د امريکا موخې

دروان ۲۰۲۰م کال دروميې مياشتې په ۳مې نېټې دبغداد هوايي ډګر ته څېرمه دامريکا په يو هوايي بريد کې دايران د القدس ځواکونومشر جنرال سليماني وژل کېدل دکال دپيل سره سمه هغه ستره حادثه ده چې شايد ديوداسې سترجنګ سبب شي چې ټول منځنی ختيځ يې په لمبو کې ولوپه شي.

دايران دانقلاب نه پس اوبيا په ځانګړې ډول په تېرو دوه لسيزو کې که څه هم دايران اوامريکا ددښمنۍ او دوستۍ خبره ډېره پېچلې ده خو

دتېر ۲۰۱۹م کال اوبيا ددې کال په وروستيو څومياشتوکې په خليج کې ځنې اقداماتو اودرامنځته شويوبدامنيو ځينو پېښو؛ ددې پېښوپه مقابل کې رامخې ته شويو غبرګونونو؛ ګواښونو اوجنګي تياريو ته په پام سره په ښکاره داسې ښکارېده چې دايران او امريکا لانجه دخرابېدو پرلور روانه ده.

داهم اوس له شک نه وتلې ده چې دا پېښې پلانې وې او په خليج کې دخپل نظامي حضور دلاپراخوالي لپاره امريکا ددې کال له پيل نه دلارو برابرولو هڅې پيل کړی وې.

چې همدې خبرې دسيمې زياتره هېوادونه سخت انديښمن کړي وو.

دبېلګې په توګه دايران د اتومي پروګرام په اړه په ۲۰۱۵م کال کې رامنځته شوی تړون امريکا لغوه کړ اوپه ايران يې نوي اقتصادي بنديزونه ولګول.

د ۲۰۱۹ م جون مياشتې په ۱۲ مې نېټې دوه دتېلو سمندري امريکايي ټانکرونه چې له دوبۍ نه يې سنګاپور ته تېل وړل عمان خليج کې دايران دساحلي سرحد په ۲۶ کيلومترۍ کې دحملو ښکار شول.

امريکا ددې حملو پړه پرايران ورواچوله او يوه داسې ويډيو يې هم خپره کړه چې پکې داسې ښکارېده لکه چې دحملې نه څو ساعته پس دايران پاسداران انقلاب يوه ګشتي کښتۍ پدې دواړو ټانکرونو کې ديو له څنګ نه دداسې انفجاري موادو دلرې کولو هڅې کوي چې لا چاودلي نه وو.

خو دايران دباندنيو چارو وزير جواد ظريف پدې بريدونو کې دايران لاس لرل په سختو ټکو رد او دامريکا دعوی يې بې بنسټه ګڼلې وه.

له دې وړاندې دمۍ مياشتې په دوهمې لسيزې کې دعراق پلازمېنې بغداد کې دامريکا دسفارت ترڅنګ يوتوغندی پرېوت چې ځاني زيان يې نه درلود.

امريکا دا دايران له لورې دامريکا پرسفارت توغندويې ناکام بريدګڼلی وچې دسفارت پرځای توغندی دسفارت په څنګ کې پرېوتی و.

له دې پېښې نه پس دامريکا ولسمشر ټرمپ ايران ته ګوت څنډنه کړې وه او ويلې يې و چې ايران دې له خپلو ناوړه کړنو لاس په سر شي ګينې ناوړه عواقبو ته دې ځان تيار کړي.

ايران دامريکا دا دعوی هم بې اساسه ګڼلې اوبريد کې يې دخپل هېواد لاس لرل رد کړي و.

همدا راز دمۍ په دوهمې لسيزې کې دعربو دمتحده اماراتو پرساحل دسعودي دتېلو پرباروړونکو سمندري جازونو باندې بې پيلوټه طيارو بريدونه کړي وو.

دا بريدونه چې حوثي ملېشو يې مسئوليت پرغاړه اخستی و دايران او امريکا ترمنځ دتاو تريخوالي درواني لړۍ يوه بله مهمه کړی ګڼل شوې وه.

اودتېر۲۰۱۹م کال ستمبر میاشت په۱۴مې نېټې په سعودي عربستان کې دارامکو په نوم دتېلو تولیدونکې دنړۍ ترټولو ستر شرکت دتصفیې په دوه مرکزونو (بقیق اوخریص) دبې پیلوټه طیارو هوایي بریدونه خو بیا ډېره ستره پېښه وه.

دې حملې سعودي عربستان ته دومره دروند اقتصادي زیان ورسولو چې داحملې دسعودي دولت دخپل هېواد ۱۱ستمبر وګڼلو.

دیمن حوثیانو ددې بریدونو پړه پرغاړه اخستې او د داسې نورو بریدونو دړکه یې هم کړې وه.

خو امریکا اوبیا ورپسې دسعودي دولت ددې بریدونو پړه پرایران وراچولې او ویلې یې و چې بې پیلوټه الوتکې دایران نه راپورته شوې وې.

خو ایران دا اعاوې په کلکه ردکړې وې.

زیاتره پوهانو ویل چې ایران به دخپلې خاورې نه پرسعودي عربستان دا بریدونه، نه وي کړي څکه پرایران ددې بریدونوډثبوت په صورت کې ایران دنړیوالو دسخت غبرګون سره مخامخ کېدای شو.

دنړۍ له سترو زبرځواکونو پرته بل یو هېواد هم دداسې بریدونو جرأت نه شي کولای اونه یې هم دبدو عواقبو زغم لرلای شي.

په سعودي عربستان کې دامریکا دفوځي اډواو د پرمختللي پیټریاټ دفاعي نظام په شتون کې چې پرسعودي دومره ستر بریدونه کېږي نو دا په ښکاره دامریکا ناکامي او په حقیقت کې په داسې پېښو کې دامریکا دلاس لرلو ډېر روښانه دلیل دی.

نولنډه داچې دې پېښواو دامریکا دولسمشر ټرمپ سختو دړکو ته په پام سره دډېروشنونکو په عقیده د امریکا له لورې دایران پرضد دمحدودو نظامي عملیاتو تمه کېدله چې دسلیماني دوژلو په صورت کې یې ترسره کړل.

خو دمنځني ختیځ دچارو هغه پوهان چې حالات ډېر په دقت څاري هغوئ ایران ته دسزاورکولو دا فکر ردوي او دا په اصل کې منځني ختیځ کې دیو شیطاني پلان دعملي کولویوخورا ډېر مهم قدم بولي.

داځېرونکي دسعودي سره دامریکا ددوستۍ او دایران سره د دښمنۍ خبره دامریکا دشومو پلانونو دپوره کېدو لار بولي؛ نور دسعودي او ایران دواړو اقدامات دامریکا په ګټه تمامېږي؛ بس فرق همدومره دی چې سعودي امریکادځان محافظ ګڼي نودامریکادحکم انتظار کوي اوقدم پورته کوي اوایران فکرکوي چې هرڅه دخپلې ګټې لپاره کوي؛ دمنځني ختیځ روان وضعیت ته په پام سره امریکا ځان ته محتاج ګڼي؛ دایران داقداماتوپه مقابل کې دامریکا عکس العمل دنه رامخې کېدلو لامل هم همدا دامریکا ضرورت بولي؛ داحالت دځان لپاره ښه موکه ګڼي نودامریکا سره اوږه په اوږه اوکله ترې یوقدم مخکې مخ په وړاندې ځي؛ خپل نفوذ زیاتوي؛ ملېشې جوړوي؛ پرهېوادونوخپله سلطه قائموي اودسیمې دولسونو او دولتونو دخفګان اوخوشالۍ هیڅ پروانه ساتي.

نوسعودي که دامریکا اتحادي دی ایران یې هم په ښکاره دښمن اوپه عمل کې دیوسنګر ملګری دی؛ ایران خوپه ښکاره مرګ بر امریکا چغې وهي او امریکا شیطان بزرګ ګڼي خوپه عمل کې بیا دهمدې شیطان بزرګ ترڅنګ ولاړ دی او په منځني ختیځ کې دایران ټول نفوذ دهمدې شیطان بزرګ دمهربانۍ نتیجه ده.

کله چې پر افغانستان امریکا یرغل کاوه نو داګومان کېده چې ایران به دلته امریکا ته ډېر مشکلات جوړکړي خو موږ ولیدل چې دایران تابعدارانو دامریکا پر لور یوه لوټه هم ورګوزار نکړه بلکې دمجاهدینو پر ضد ورسره په صف کې ودرېدل چې ترننه لا ولاړ دي؛ حال دا چې همدا خلک ایران سوریې ته دجنګ لپاره لېږي؛ ورته دجنګي روزنه ورکوي او دفاطمیون په نوم یې ددوئ داسې لویه وسلواله ډله جوړه کړیده چې شمېر یې ۱۰ زرو ته رسېږي.

هغه امریکا چې دطالبانو سره دتړاو په جرم دمسلمانانو په کورونو بمونه غورځوي، شهیدانوي یې اوزندانونو ته یې وړي نه یې کله پر ایران پدې هکله اعتراض وکړ؛ نه یې فاطمیون تروریستان وګڼل اونه یې هم کوم یو پدې جرم ونیو.

په عراق کې خوایران او امریکا بیخي اوږه په اوږه دخپل دښمن پرضد جنګېږي؛ که هدف د دواړو یونه دی دښمن خو یې یقیناً چې یو دی.

د ۲۰۱۷م کال دمارچ میاشتې په وروستیوورځوکې چې په جنبواکې امریکا دخپلوپنځو اتحادیانوپه ملتیادایراني قیادت سره دایران داتومي پروګرام پرسرخبرې کولې په همداغو ورځوکې دداعش پرضد دعملیاتو په نوم دعراق دتېلوغني ښارتکریت باندې دقبضې راوستلوپه موخه دایران په لاس جوړې شوې دبدر، قدس اواخوان حزب الله په نوم دملېشو۳ډلې دامریکایې ځواکونوسره اوږه په اوږه ددې ښار دنیولو لپاره جنګېدلې او ددې دجنګ مشري جنرال قاسم سلیماني کوله.

پدې جنګ کې امریکا راداخلېدل دپاسداران انقلاب په خوښه شوي و اوترون ورسره دبدر، قدس اواخوان حزب الله په نوم ددرې واړوډلومشترک ویاند نعیم العبیدي کړی و؛ دشوي ترون پراساس امریکاپه ټول جنګ کې دپاسداران انقلاب اویادوعراقي ملېشو هوایې مرسته کوله چې په همدې لړ کې سهواً دامریکا په یوې ډرون حملې کې دپاسداران انقلاب دوه جګ پوړي افسران علي یزداني اوهادي جعفري ووژل شول چې مړي یې په تهران کې خاورو ته وسپارل شول؛ ددې دواړو لوړپوړو افسرانوپه وژل کېدودایران مطبوعاتو ډېره غوغا جوړه کړې وه او ایله هغه مهال یې غوغا بنده شوه چې نعیم العبیدي وویل: دامریکا په ډرون حملې کې ددوئ وژل کېدل قصداً نه وو.

پورته یادې شوې عراقي ملېشې هماغه ملېشې دي چې په اړه یې دملګرو ملتونو عمومي منشي بانکي مون ویلي و چې داملېشې کومې سیمې قبضه کړي پکې دخلکوعامه وژنه کوي؛ ودانۍ دځمکې سره برابروي اودخپل تسلط لاندې سیموکې دخلکواختطافونه اوپرمېرمنوجنسي تېري کوي.

خوداچې دا ډلې د امریکادجنګ ملګرې ډلې وې نو دملګرو ملتونو دسرمنشي څرګندونوته یې هیڅ اعتنا ونکړه ځکه چې دامریکا تاریخ ددې خبرې شاهد دی چې دچا خفه کول نه غواړي نوپه ډېروسترونااوړه کړو وړویې هم نه یوازې داچې سترګې پټوي بلکې مرسته یې هم کوي اوپدې لارکې دټولې نړۍ د اعتراض پروا نه لري چې قدم په قدم اوپه هرحالت کې داسرائیلونه حمایت یې ژوندۍ بېلګه ده.

دامریکا سره یوځای ددښمن پر ضد دجنګېدلو ملګرتیا ده چې ایران ته یې په منځني ختیځ کې دخپل نفوذ زیاتولو موکه په لاس ورکړېده.

ایران ښه په جهر وایې چې دشام، عراق، یمن اولبنان څلور واړه هېوادونه یې ترنفوذ لاندې دي اویادو څلوروواړو هېوادونو دولتونه یې دحکم تابع دي.

دایران دا دعوی تشه دعوی نده، همدا حقیقت دی؛ په تېرو دوه لسیزوکې چې امریکا په منځني ختیځ کې ایران ته ډېره زیاته مخه ورکړه نو دپاسداران انقلاب دسلیماني په څېر جنرال یې ددې څلور واړو هېوادونوعسکري قوت په خپل لاس کې واخست اوپه اصلي معنو کې یې ددې هر هېواد وسلوال ځواک دسپاه پاسداران جز وګرځاوه.

که امریکا نه غوښتای آیا ایران په دا دومره سپین سترګۍ داخود سري کولای شوه؟ دایران دې کړنو عربان سخت ورخطاکړیدي چې همدادامریکا هدف دی.

امریکا دایران په اړه ترډېره حده له مبالغې نه کار اخلي؛ ایران چې په فوځي ډګرکې څومره ځواکمن دی امریکا یې دهغې نه ډېرزیات ځواکمن معرفي کوي چې ددې ستر دوه هدفونه دي یو خو دا چې ټوله عربي نړۍ دایران نه په سختې وېرې کې وساتي ترڅو عربي هېوادونه امریکا خپل نجات ورکونکې وګڼي؛ هریو هېواد خپله دننۍ او بهرنۍ تګلاره دامریکا دخوښې سره سمه برابره کړي؛ په خلیج کې دامریکا حضور اړین وګڼي اوپه نتیجه کې یې تل ترتله پروسایلو دامریکا قبضه وي.

دایران په اړه دمبالغې دوهم ستر هدف دا دی چې په سیمه کې دوسلو زیاتولو مسابقه رامنځته شي او بډای عربي هېوادونه ښې ډېرې وسلې له امریکا نه واخلي او امریکا هرکال له دې لارې په ملیاردونو ډالر ترلاسه کړي.

دچاروپوهان وایي دشام؛ عراق اویمن په جنګونوکې دایران درابنکېلولو اوپرسعودي دحوثیانودتوغندویې بریدونو د نه مخنیوی سترهدف هم همدادی.

دایران له لورې حوثیانو ته دورکړل شویو بالاستیکي توغندو دخنثی کولو لپاره سعودي دامریکا نه مصنوعي قمر په

کرایه نیولی دی چې میاشتینۍ کرایه یې ۴۵۰ ملیونه ډالر کېږي.

سعودي تراوسه دحوثیانو پرضد ۹۰ زره جنګي پروازونه کړیدي چې پرې ۸ ملیارده ډالر مصرف شویدی.

پدې جنګ کې تر ټولو زیاتې پیسې دحوثیانو له لورې دسعودي پرښارونو دتوغول شویو بالاستیکي توغندو پرخنثی کولو مصرفېږي ځکه چې دهرتوغندي دخنثی کولو لپاره ۳ پتریاټ توغندي توغول کېږي او دهر پتریاټ توغندي قیمت ۳ ملیونه ډالر دي.

د۲۰۱۵ م کال دمارچ میاشتې نه تردې دمه حوثیانو پرسعودي نږدې ۱۵۰ بالاستیکي توغندي توغولي دي.

دپیټریاټ توغندو پرته هم سعودي عربستان دروسې نه ۴۰۰ S سستم او دامریکا نه تاډسستم اخستی چې په ساتنې او پالنې یې هر کال تر ۱۰۰ ملیونه ډالر مصرفېږي.

سعودي عربستان لګیادی د یوبل پسې لویدیځو هېوادونو سره امنیتي تړونونه هم لاسلیک کوي او سعودي اوس دنړۍ څلورم هغه ستر هېواد ګرځېدلی دی چې دخپلې دفاع لپاره تر ټولو زیاته بودیجه ځانګړې کوي.

نوایران ته دمخې ورکولو اوپه عربانو یې دوېرې خپرولوله لارې چې امریکا دا دومره پیسې ترلاسه کوي ولې به دایران دنفوذ مخه نیسي.

اوس پوښتنه دا ده چې ایران به په منځني ختیځ کې په خپل لاس دجوړو شویو ملېشوپه مرسته دامریکا پرضد نوی جنګ پرانزې که دغې اخستلو په اراده به دامریکا کومه سمندري بېړۍ په نښه کړي؟

اصل خبره دا ده چې ایران که هر څومره ستر اتومي ځواک شي او جنګي وسایل یې که هر څومره پرمختللي شي امریکا اونورې لویدیځې نړۍ ته یې خطرونه متوجې کېدل له حقیقته لرې اوله مبالغې ډکه خبره ده؛ حقیقت دادی چې دایران ټیکنالوژي اووسایل دامریکا عشر عشیر ته هم نشي رسېدای؛ امریکا خو امریکا ده، دامریکا دنورو غربي اتحادیانو توغندویې ټیکنالوژي هم ډېره پرمختللې ده او اتومي پروګرامونو یې ډېر اوږد واټن وهلی دی، پداسې حال کې چې دایران دا هرڅه نوي دي او دلویواتومي طاقتونوسره یې داتومي ځواک برابرېدلوپر وړاندې لا ډېر اوږد واټن پرمخ دی.

هو! امریکا به هڅه وکړي چې پرعربي نړۍ دایران دحملو خوف او وېره لا زیاته کړي

ترڅو په خلیج کې خپل فوځي حضورنور هم پیاوړی کړي لکه چې پرارامکو دبریدونو نه پس امریکاهمداسې اقدام وکړ.

دامریکا دفاع وزارت سعودي عربستان ته دنویو۳ زره فوځیانولېږدول اعلان کړل

هغه دسعودي عربستان دتېلوپه تاسیساتو شوي ستر بریدونه د دې اقدام لپاره دجوازپه توګه وړاندې کړل او ویې ویل چې دسعودي عربستان نه ددفاع په موخه یې دا ګام پورته کړ.

دفاع وزارت وویل چې دا تازه دمې ۳ زره فوځیان به دمرکزي قوماندې په سیمه کې مېشت کېږي؛ ددوئ سره به ګڼ شمېر ایف ۲۲ ډوله هغه طیارې هم وي چې رادار یې نه شي معلومولی؛ دوئ به دسمندري لارو دساتنې کوي اودسعودي عربستان په فوځي اډو کې به دتوغندو ضد پیټریاټ نظام نصب کړي.

ایران چې دتېلوښې ډېرې زېرمې اودکرهنې اومالدارۍ لپاره ښه فراخه ځمکې لري؛ صنعت اوتجارت یې ښه کامیاب دی اودخلیج اوټول منځني ختیځ په هېوادونوکې یوهم په نظامي ډګرکې دځان سیال نه بولي نو په خپل زور ډېر مغرور دی؛ یوائې دخپلو اهدافوحصول ضروري ګڼي اودسیمې دهېوادونودخوشالۍ اوخفګان څه پروا نه ساتي؛ متقابل احترام بېخي نه ښکاره کوي اونه ددې هېوادونوسره دښوروابطواواعتماد دفضا رامنځته کولولپاره څه خاص هڅې کوي چې داایران یوه لویه کمزوري ده؛ که ایران داکمزوري له ځان نه وویسته اودسیمې دهېوادونوپه اړه یې خپل دریځ کې بدلون راوستولونو دا به د ایران اوعربي هېوادونو لپاره ډېره ګټوره وي ګینې ایران اودسیمې نور اسلامي هېوادونه به سترمادي اومعنوي تاوانونه زغمي اوپه ترڅ کې به یې دامریکااونوروشیطاني قوتونوشوم پلانونه تطبیقېږي.



ليکنه: أبو إحسان عامر

# علماء

## هم بې طرفه کېدای شي؟

استعمارګرو ځواکونو تل په مستعمره هيوادونو کې له نظامي جګړو سره په څنګ کې پر فکري جګړه زيات وخت او مال صرف کړی، د طاغوت لښکر دې نتيجې ته رسېدلی چې په عسکري جګړه کې که د سر په قيمت کوم ښارونه يا فکرونه تر خپله سلطه لاندې کوي، طبعي ده چې د هغه به بيه زياته او وخت کم وي. خو کومو ښارونو او فکرونو ته چې د دوی د فکري جګړې ګرد رسېدلی، هلته بيا په لنډ وخت کې د دوی هرې خبرې ته لبيک ويل شوی او د دوی لپاره د دوی تراشل شويو غلامانو د دوی په نيابت تر دوی ډېر کار کړی.

همدا لامل دی چې افغانستان کې هم د غرب تر چتر لاندې سلګونه رسنۍ لګيا دي او غرب ته ذهن سازي کوي، غرب د افغان مؤمن ولس په تسخير کې د ګڼو دجالي حربو تر څنګ يو شمېر تش په نوم علماء هم ګومارلي تر څو دوی (اشغالګر) خلکو ته په مېلمنو او درانه بمونه يې په خوږو تېر کړي،

وخت پر وخت يې د دې شيطاني او دجالي ټولي په مټ د حق سپينه سينه داغلې، د حق پر لور يې د فريب او د تلبيس درانه غشي-وار کړي او تل يې د حق د لښکر مخته خنډونه إيجاد کړي.

دوی په ډېر مهارت او د شرعي نصوصو په تحريف تل کوشش کوي چې زموږ دا روا او روان مقاومت د حيثيت او مشروعيت له اړخ نه کمرنګه کړي.

د إشغال له پيل نه تر اوسه په کراتو کراتو دې درباري طبقې له ګڼو لارو او پټو زاويو نه زموږ سپېڅلي احساسات او فرض مبارزه هدف ګرځولې، خو لله الحمد هر ځل بې له ذلات او مختورۍ نه پرته بل څه په لاس نه دي ورغلي، ياده درباري ډله چې د روپۍ او چوکۍ افراطي مينه يې ارام ته نه پرېږدي، دا ځل بيا په نوي نوم (بې طرفه علماء) راڅرګنده شوه او د (صلحه غواړو) په کاذبو چيغو يې بيا د مجاهدينو او ملت د ښلتون او د إشغال د تجويز لپاره په داسې حال کې په غونډو او سفرونو پيل کړی چې پر إشغال پلوۍ يې د ملي امنيت له لوري ور په غاړه شوې شنې استخباراتي ټوټې له ورايه شاهدي ورکوي.

اوس د تعجب او پوښتنې ځای دا دی چې علماء چې علماء شي، هغوی هم بيا بې طرفه کېدای شي؟!

علماء څنګه هغه جګړه کې بې طرفه شي کومې ته چې واړه بوش د صليبي جګړې نوم ورکړ؟!

علماء خپل إيمان او علم په دې مکلف ګرځولي چې د کفر او إسلام جګړه خو څه دوی به د خلکو تر مينځ په شخصي او حقوقي شخړو کې هم ساکت او بې طرفه نه پاتېږي بلکې د مظلوم طرف او د ظالم مخه به نيسي.

له دې خبرې به تېر شو چې په داسې حساس وخت کې عالم ته سکوت او بې طرفي څومره شرم او څومره جرم دی، دې خبرې ته به راشو چې بې طرفه يعني څه او دوی څنګه بې طرفه دي؟

دوی خو د اشغال له پيل نه تر اوسه څو ځله خپلې ژبې د اشغالګرو په ساتنه کې د زغرو غوندي وکارولې؟

دوی هغه وخت لا زيات په حرکت او جوش راغلل کله چې د ۲۰۱۸ کال په مارچ مياشته کې د ناټو ځواکونو امريکايي قمندان (نيکولس) د ناټو د روزنې ماموريت مرکزي قمندانۍ کې د دوی د نن کړنو ته په اشاره زياته کړه: (موږ به د صلحې د خبرو تر څنګ پر طالبانو نظامي، مذهبي او ټولنيز فشار هم زيات کړو) دوی له هغه وروسته د صلحې په دروغجنو شعارونو منظم پيل وکړ او د

نیکولسن په خوښه او مصرف یې د کابل، جاکارتا او سعودي د غونډو په شمول ګنې غونډې وکړې تر څو زموږ مشروع جهاد خلکو ته په نامشروع تعریف کړي.

دوی وو چې پر ناخبرو علماؤ یې د کابل غونډه کې د روپیو لفافې او لا له وړاندې تیاره شوې فتواوې چې پرې لیکلي وو: (فتوای متفقه علمای کشور در رابطه با وضعیت موجود افغانستان) توزیع کولې.

هو: دوی هغه بې طرفه علماء چې زیاته برخه یې دکابل اداره کې رسمي دندې لري؟ دوی یعنې هغه بې طرفه چې دکندوز د شهیدې مدرسې په ګډون لسګونه مدارس تخریب شول خو دوی پرې غوږ هم و نه ګراوه؟ دوی هغه بې طرفه چې دلته د بمونو د مور پر واري هم په داسې حال کې غلي شول چې د دې ادارې د زاړه مشر په ګډون ګنو چارواکو یې په کلکه غندنه وکړه؟

دوی که واقعي صلح غواړي او یا امن طلب وي ولې بیا د امریکا له سفارت او د غلامانو له مرکزي ځالي ارګ نه قدم اړوي؟ اوس خو نړۍ ته ثابته شوه چې دلته د ناورین مور امریکا هره شپه لسګونه بې ګناه افغانان په شهادت رسوي، خو دوی بیا هم طالبانو ته ورځي او د ملامتیا ګوته طالب ته نیسي؟ دوی چې طالبانو پسې ګرځي او صلحې ته یې دعوتوي بیا ولې طالب پسې- ګاونډیو هیوادونو ته ځي او طالبان خو د دوی په وینا د هیواد پر اویا سلنه خاوره واک لري؟!

ملت پوهیږي چې خبره څه ده او دوی څوک او له کومه دومره منظم را نازل شوي دي؟ دوی د بارودو په دومره پراخ دود کې بیا هم ولې دومره تر او تازه ګرځي او دوی د ملایي په ضعیف اقتصاد کې څنګه او ولې په الوتکو کې منظم سفرونه کوي؟!

دا چې دوی د اشغالګرو پر دومره سترو جرمونو تله کشوي او د دوی په اړه یې درانه سکوت ته مخه کړې له دې جوتیږي چې د پردې تر شا څه خبره ضرور شته، هغه د چا خبره

کوم چرګ چې اذان نه کوي هرومرو به یې مرۍ کې ستونزه وي.

# رازونه

د الله تعالی د بعضې مخلوقاتو دا پټ رازونو نه خبر یاست؟

## ماهی

یو نشه سړی چې کله ماهی بوی کړي نو نشه یی ختمیږي.

## اوښ

اوښ یواځنی حیوان دی چې تریخی نه لري' نو ددی وجهې نه یې صبر هم زیات دی.
دجاپان په انومن نومي ښار کی یو قِسم ونه ده چی کله ترینه لمر غائب شي نو لوګی ترینه خېژي.

## غوماشی

دغوماشي په شاه بانډې یو وړوکی حیوان اوسیږي چې په سترګو نه ښکاري او دې خبرې ته الله تعالی اشاره کړې چې فرمایي..
أن الله لایستحي أن یضرب مثلاً مابعوضه فما فوقها

## خنځیر

خنځیر یواځینی مخلوق ده چې اسمان ته نشي کتلی.

## منه

منه یواځینی میوه ده چې خوب تختوی.
یو مسلمان انسان چی کله مړ کیږي نو د مرګ نه مخکې فرشتې ویني ځکه په ستر ګو کې چې کومه پرده ده دملائکو او د پیریانو د نه لیدو ده، مرګ ته نزدې وخت کی الله تعالی هغه لیرې کوي، الله تعالی فرمایی: {فکشفنا عنك غطاءك فبصرك الیوم حدید}
دروح دوتلو درد او تکلیف دومره دی لکه په انسان چی دزرو تورو ګزارونه په یو ځل وشي.
الله تعالی دی زمونږ روح پداسې حال کې واخلي چې زمونږ څخه راضي وي او مونږ دایمان په حالت کی و اوسو.

# د سنګوریانو پروژه

## له کاره لوېدلې پرزه

محسن پکتین



څو ورځې وړاندې د هرات په شنډنډ ولسوالۍ کې د یوې دولت پلوې ډلې چې په سنګوریانو یاسنګوري اربکیانو یادېږي بهرنیو ځواکونو بمبار وکړ او د یادې ډلې د نظامي مشر ـ رازمحمدننګیال په ګډون د هغې ګڼ افراد یې و وژل چې ترڅنګ یې ولسي خلکوته هم مرګ ژوبله او زیان واوښت.

یاده ډله د طالبانو د مشر ـ مرحوم ملامحمدعمرمجاهد د وفات او د نوي مشر ـ په توګه یې د ملااخترمحمد منصور د ټاکل کېدو له اعلان سره سم له طالبانو لاره بېله کړې وه او په لومړیو کې د منصور دادالله په نوم یو بل طالب جنګیالي سره یوځای شول چې لا له مخکې طالبانو ګوښه کړی و، خو ډېر زر دا ډله بېرته د ملارسول او منان نیازي په مشرۍ له نوموړي جلا شوه.

د منصور دادالله ډله چې داعش ته منسوب ازبك او نور جنګیالي یې هم لرل وروسته له هغه چې د طالبانو له لوري د جګړې نه کولو وړاندیز او له خپله اړخه د مطمئن ژوند ډاډ یې ونه منل هغو د نوموړي په ګډون د هغه ګڼ افراد له منځه یوړل او ډله یې وپاشل شوه، د پکتیکا په لیري پرتې ورممۍ سرحدي ولسوالۍ کې د هنر په نوم د دې ډلې یو جنګیالي ګروپ یې هغه مهال د طالبانو د برید ښکار او له منځه یووړل شو چې د وازېخواه، تروې او ورممۍ ولسوالیو دولتي چارواکو سره د معاملې او د طالبانو پر وړاندې د هغو د ملاتړ راخپلولو په هڅه کې و، په دې برید کې هغه له خپلو څو افرادو سره و وژل شو چې پر ملاتړ یې دولتي عسکرو او پولیسو هم په ځمکنیو او هوایي بریدونو کې د طالبانو لیکې په نښه کړې.

رازمحمد ننګیال چې یو وخت د دې ډلې ویاند هم و او ورسره افراد یې اړ شول خپل جنګیالي له زابل او ورڅېرمه سیمو څخه ورټول او په هلمند، هرات او ځیني نورو سیمو کې د ملارسول او منان نیازي سره یوځای کړي چې بیا ننګیال د دې ډلې د نظامي برخي مشر ـ وټاکل شو او دا دی اوس و وژل شو، موده وړاندې هم په هرات کې د دې ډلې ګڼ شمیر افراد د طالبانو په یوه چاپه کې وژل شوي و.

دغه ډله د اشغالګرو او د هغوی ګوډاګیانو له لوري تطمیع او له طالبانو پر دې اټکل راجلا کړل شوه چې خدای مکړه د هغوی ترمنځ به درز پرېباسي، همدغه چاره د همدغو او همدومره افرادو راجلا کول یې د زماني مقطع له لحاظه هم مهم ګڼل، له همدې أمله تر یو وخته ورته د اسلامي امارت شورا نوم کارېده، په ښکاره د طالبانو او ګوډاګۍ ادارې دواړو په وړاندې یوه ځانته ډله پېژندل کېده، په پټه د دې ادارې له لوري ترې ملاتړ او په ښکاره ورته زهرجن تبلیغات کېدل چې بیا لنډ وخت وروسته دا هرڅه روښانه شول او اوس د ولسي پاڅونوالو (اربکیانو) برخه ګڼله کېږي چې د اشغالګرو او ګوډاګیانو یې له هر راز ملاتړ څخه برخمن دي.

ننګیال او افراد یې داسي مهال په نښه کېږي چې ترې څو ورځې وړاندې افغان وطن ویب پاڼې طالبانو ته د نږدې سرچېنو په حواله ویلي وه چې د ملا رسول ډلې څو مهمو مشرانو د طالبانو له مشر سره بیعت کړی او پکې د ګوډ رؤف او ننګیال نومونه هم یاد شوي و، د کابل ادارې ملي امنیت دغه برید خپل ترلاسه کړی هدف یاد کړی، خو دا چې ولې یې په نښه کړي او ملي أمنیت یاد کړی هدف څه و؟ په اشغالګرو پوري اړه لري، د ګوډاګیانو یې نه خپل هدف اعتبار لري او نه هم د اشغالګرو د هدف په اړه پوهېږي، د دوی دنده یواځې د اشغالګرو د کړنو توجېه او د دوی په اشاره وحشي کړني دي او بس.

خو د یادي ډلې یوتن بیا ګیله کړې چې نه دولتي چارواکو د دې پېښې. په اړه د پلټني ډاډ او نه هم غمرازۍ ورسره کړې، دا په ډاګه داښيي چې نه اشغالګرو په بمبارۍ کې تېروتنه کړې او نه هم دې ډلې ترې د داسي خونړي برید تمه لرلې وه، په دې مانا چې داسي څه یې نه و کړي چې پرې د خپلو اشغالګرو ملاتړو له لوري پر دومره وحشت بمبار کړل شي.

دا چې د داعشیانو په وړاندې د طالبانو پرمختګونه او په ځانګړې په ننګرهار کې د داعشیانو ماتول یې د اشغالګرو د جنګي مزدورو پروژو د ناکامۍ یوه ترټولو ښه نمونه ده، اشغالګر پوهېدلي چې د طالبانو پر وړاندي د داعشیانو له ماتې وروسته اربکیان، سنګوریان او بله هره پروژه په مطلق ډول ناکامه ده او عملاً ویني چې کومه تشه پرې نه ډکېږي، نو سنګوري پروژه یې نوره د جګړې له کاره لوېدلې پرزه ده چې له منځه یې یوسي، اشغالګرو وړاندي څوځله اربکیان هم بمبار کړي خو دومره درنه مرګ ژوبله یې نه وه ور اړولې.

دلته ګوډاګیتوب دومره وده کړې چې د هر ګوډاګي سرته جلاجلا خپل ملاتړی اشغالګر جلاد نه وي دربدلی هغه سر نه خلاصوي او چې سرته ورته ودرېږي بیا نو د خلاصي نه وي، او کنه اشغالګر اوس هرچا په داسي ناځوانمردانه کړنو پېژندلي او

نړیوال ریکارډ لري، دلته هم دا لومړی ځل نه دی چې دا ډول پېښه رامنځته کېږي او یا قرباني شویو سنګوریانو په خپله دېته ورته پېښې. نه وې لیدلې، دا هرڅه و خو هغوی ترې عبرت نه اخېسته، په یو ډول او یوه توجېه یې ځان غولولی، ځان یې ترې خوندي او خلاص ګڼلی، د یوې دغسې. ورځې خیال یې هسې. د ماغ خوړل او لېونتوب ګڼل او چې وربانديې دغه ورځ راغله بیا ترې د خلاصي نه و، اوس باید دا پاتي همسنګران او ملاترې یې نور سر خلاص کړي.

دغه غولېدلي ځوانان چې ځيني وخت د ملا عبدالسلام ضعیف او نورو هغو طالبانو چې اشغالګرو زندانونو ته اچولي په اړه ناسمې ځرګندوني کوي او ورته په یو او بل نوم د پړ ګوته نیسي، زه دوی ته وایم چې لږ متوجه شئ! په دغو طالبانو کې داسي څوك هم و چې په پیل کې ستاسو په څېر خو د دښمن په حیث تېراېستل شول له تسلیمۍ او له اشغال سره یوځای کېدو وروسته اشغالګرو بندیان کړل او هغه څه یې ورسره وکړل چې تاسو هم اوس پرې دوی پړ ګڼئ، پاتي طالبان لاتراوسه ورسره جنګېږي، د دښمن په صفت تېراېستل شویو طالبانو هم له راخلاصېدو وروسته یوځل بیا ورسره تر پخوا پر لوړ عزم او متین هوډ سیاسي او جګړه ایزه مبارزه پیل کړه.

تاسو چې د طالبانو په لیکو کې ټاکلي رتبې او دندې غوښتې، هغه نه د دغه وخت و او نه هم د طالبانو او جهاد موخو دغه ایجابوله او دا یوه ډېره وړه تېروتنه وه چې وشوه، خو تاسو پر همدې له طالبانو لاره بېله کړه او پرې سربېره مو د دوی پر وړاندې وسلوال مخالفت وکړ او اشغالګرو او د دوی مزدورو کورنیو مزدورانو ته مو په دې تمه لاس ورکړ چې د طالبانو پر وړاندې یې تر هغه پوري ملاتړ له ځان سره ولرئ چې په خپلو پښو ودرېږئ او بیا مو له هغوی هم لاره بېلوله، دا مو بالکل نه غوښتل او نه مو تمه وه چې د دې سرچپه اشغالګر او مزدور ملاترې به یې تاسو له خپلو موخو داسي سپېلني کوي لکه چې عملاً تاسو وینئ.

خو دا لکه چې ولېدل شول دومره ساده او پرمفته نه وه لکه چې تاسو اټکل کړی و، اوس تاسو ښه پوهېږئ چې له اشغالګرو څخه ستاسو تمه سرچپه شوې او د دې پر ځای چې خپلې موخې ولرئ یاپې تعقیب کړئ هغوی مو یوازې د خپلو موخو لپاره کاروي، نه ستاسو موخې د دوی له موخو سره جوړې راځي او نه تاسو خپلو موخو ترلاسه کولو ته پرېږدي، څومره چې تاسو قرباني ورکړئ هغومره له خپلو موخو لیرې کېږئ او په دې ډول به په خپل ټول ژوند د هغو رتبو څښتن نشئ. چې تاسو له طالبانو غوښتې او نه به هغه موخې ترلاسه کړئ چې د اشغالګرو په ملاتړ راخپلولو کې مو لټولې.

دا هم اوس په اثبات رسېدلې چې تاسو نه یوازې خپلې موخې بایللې او د اشغالګرو په ملاتړ راخپلولو کې مو تېروتنه کړې، بلکې دغه مرګونه او وېرونه هم له خپلو موخو پر شا تګ کې پر اوږو وړئ، ډېره بده لا دا چې تاسو د طالبانو پر وړاندې جګړه کې ورپورې لاس نبولي همغو اشغالګرو هم ماتې خوړلې او طالبان پر برلاسي شوي، نور نو لاڅه وشي او تاسو د څه انتظار باسئ؟! تاسو تر اوسه په دې اړه لږ فکر کړی چې پر څه مو له طالبانو لاره بېله کړه؟ تمه مو څه وه او پېښ څه شول؟ او اوس څه روان دي او تاسو په کومه ځئ؟! که اوس هم دغه درك کړئ او په یوه درېیمه لاره غور وکړئ لاپې وخت دی.

تاسو چې اشغالګرو په تېر اېستلو د طالبانو مخ ته درولي یاست، ستاسو همسنګران یې پر ووژل نور یې خپله بمبار کړل او درته نغده یې وښوده چې تاسو مو تېر اېستلي یاست او خپل کار درنه اخلو، نور چې هرڅه در وشي یا موږ دربانديې کوو خپله یې مسئول یاست او داسي نه چې له چاسره وشول له نورو سره به نه کېږي، بلکې څوك چې له طالبانو بچ پاتي شي بې ګټي دي موږ چې هرډول وي داسي یې وژنو لکه ننګیال او ورسره هغه مو چې ووژل.

دا له شك پرته تر هغه چې طالبان په زنداني کېدو ورسره مخ شول ډېر ستر کړاو، نه هېرونکې لوی پېغور، د اندېښنې وړ او له زیانه ډکه بلکې لا د سر په بیه سراسر زیان ته د دانګلو په مانا دي، طالبان د دښمنانو په توګه بندیان شول خو ستري ګټي یې وکړې او اوس سرې سترګې لاهم دوی ګرځي، خو تاسو یې د ملاترو په توګه تېر ایستلي او له نور هرڅه وروسته په خپله ناځوانمردۍ کې د سر بیه ورپیا او مفته دربانديې په زور مني، نو اوس لا هم چې تاسو سر نکړی خلاص نو بیا کله؟!! خو همداسي به له سرونو خلاص شی لکه په شینډنډ کې ستاسو اشغالګرو بمبار کړي همسنګران.

زما خو د یو افغان وګړي په صفت دربانديې نه ده پېرزو، زما وتاسو ته همغه سپارښتنه ده چې ستاسو بنسټګر (منصور داد الله) ته د طالبانو وړاندیز و، د هغو له اړخه ستاسو د ډاډمن ژوند په اړه هم ډاډه یم، اوس چې خپلې موخي هسې هم له منځه تللې او دېردیو موخو لپاره خو تاسو له طالبانو لاره نه وه بېله کړې نور بېرته پرشا ګرځېدلو او د دې مرګونو او وېرونو له چارچوبه وتلو لپاره پر یوه لاره غور پکار دی، ترڅو دا یو سر خو وژغورئ، خپل عادي ژوند ته را وګرځئ او د خپل راتلونکې په اړه پریوه طرحه فکر وکړئ، که له چا سره د مسئولیت احساس وي له هر ډول ګواښ پرته بېرته د طالبانو لیکوته هم ورتللی شي، که له پیله طالبانو کې پاتي شوي وای دا قرباني او کړاوونه به د هېواد او ولس د دېني او ملي ارزښتونو لپاره مبارزه وه او د طالبانو له دومره پرمختګ سره چې اوس یې کړی هرڅه به سم شوي و.

نو راځئ! د ننګیال او ورسره ملګرو د برخلیك ته په کتو خپل روان او راتلونکی، د طالبانو چټك پوځي او سیاسي پرمختګونه، د اشغالګرو وحشتونه او په نږدې راتلونکې کې تېښته، دیني او ملي ارزښتونه او د خپل هېواد او ولس ښېرازۍ په پام کې ونیسئ. او د دې په رڼا کې هرڅومره زر د خپل راتلونکې په اړه پرېکړه وکړئ، د اشغالګرو او ګوډاګیانو له ملاتړه ډېرو نورو هم لاس اخېستی او لاهم په ورځني ډول دا لړۍ دوام لري، خو طالبان په کوردننه، په نړیواله کچه او تاسو یې هم پېژنۍ چیري یې هم په سپکه سترګه لا نه دي ورته کتلي.

# شهیــد مولوی سمیع الله (احرار / وحدت)

لیکنه مولوي ناصر رحماني

**زوکړه او زدکـړې:** شـیهد مولـوی سمیع الله (احرار/وحدت) تقبلـه اللـه د حاجی حمد اللّٰه زوی د مـلا حبیـب اللـه لمسی له شهادت څخـه۳۲کالـه وړانـدې په (۱۴۰۸هـق) کال د لوګر ولایـت خـروار ولسوالۍ د شیخانو کلي پـه یـوه دینـداره اوعلمـي کـورنۍ کـې زیږیـدلی، دینـي زدکړې یې د کلي له مـلا امـام څخـه پـه قاعـده او بیـا پـه قرآنکـریم پیـل کـړې، لـومړنۍ او منځنـۍ زدکـړې یـې یوځـه د خـــروار ولســـوالۍ د عبدالقـــدیم جـــان اخندزاده صاحب په خدام العلوم نـومې مدرسه کې وکړې او پاتې یـې د ګاونـډي هیواد خیبر پختونخوا ایالت په بیلا بیلـو مدرسو لکه :د خوست په پولـه د شـمالي وزیرستان غلام خان په احسـن المـدارس مدرسه کې، دمیرانشاه شـهزاده کـوټکي پــه مدرســه کــې، دټـل ښـار تــه څېرمــه دبلندخیلوپــه مدرســه کــې، دهنګوضــلع ددوابــې ســیمې پــه دارالعلــوم اســلامیه نظامیــه مدرســـه کـــې ، او طـــورې وړۍ سیمې په مدرسه کې، دخسـاري کیمـپ پـــه مدرســـه کـــې، د کرمـــې ایجنســـۍ ډاډکمـرکلي پــه فاروقیــه مدرســه کــې، داُچت کلي په مدرسـه کـې او دکوهـاټ دګمکول کیمـپ پـه مدرسـه کـې تـرسره کړې.

د لــوړو زدکـــړو وړه دوره یـــې دوه ځله د دوابې په جامعـه اسلامیه نظامیـه کې له شیخ الحدیث طالب جان (ادیب) صاحب څخه ولوستله، نوموړی پـه شـیخ صاحب ډېر ګران او خاص شاګرد یـې و، لویه دوره یې هم د هنګو ضلع دزرګري سیمې پـه جامعـه اسلامیه کـې لـه مرحـوم شـیخ القـرآن والحدیث پیر طریقت عبدالستار جان کابلي رحمه الله، او محترم شـیخ الحـدیث افضـل حسـین حسیني حفظه الله څخه وکړه او همدلته یې په ۱۴۳۲ سپوږمیز کال د ملایي پګـړۍ پـر سر او لـه حدیثو د فراغت سند ترلاسه کړ.

له محترم حسیني صاحب څخه یې په تصوف کې لاس نیوی هم کړی وو، له دوی پرته یې ځومشهورو استاذان لکه: شیخ الحدیث حاجي محمد حقاني صیب، شیخ الحدیث محمـد معلم جان صیب،مولوي محمد قاسم صـمیم صـاحب،مولوي محمدانورصـاحب، مولـوي فضـل الـرحیم عابد صیب، مولوي مسلمین راشد صیب، مولوي احسان اللّٰه عباسي صیب، مولوي ګـل الـرحمن اخندزاده صیب د یادونې وړ دي، له فراغت وروسته یې یو کال په خوست ولایت کې درس وکړ او بیا یې د امامت ترڅنګ د خپل کلي په مدرسه کې د استاد په حیث دنده ترسره کړه.

**د جهاد پیل او دندې یې:** مولوي سمیع الله احرار تقبله الله له وړوکتوبـه د ویښ ضـمیر، لوړ جهادي فکر څښتن او د ایثار او فداکارۍ له ولولې سرشاره ځلمکی و، هغه مهال چې تازه یې ږیره پرمخ راغلې وه او ورسره یـې د طـالبۍ نـوی پیـل و د ۱۴۲۵سپوږمیزکال شـاوخوا کـې چې له۲۰۰۵زیږدیز کال سره برابر دی لومړنۍ نظامي زدکړې یې وکړې او په زړه پوري مسلکي وړتیـا یې ترلاسه کړه، له همدې ځایه د اسلامي امارت د خونړي غورځنګ ملګری شو، د خپل اسـتاد او تره زوی مولوي فضل الرحیم عابد صیب تر مشرۍ لاندې یې د فـرد پـه حیـث جهـادي فعالیـت پیل کړ او د ژوند ترپایه د یو دروند او متعهد مجاهد په صفت له محترم عابد صـیب سره پـاتې شو.

دا چې احرار لا هغه مهال کشر و، سبقان یې نوي پیل کړي او کتابونـه یـې لاهـم واړه و، او بل د پلار مشر زوی (یواځینی ورور یې لا۳کلن) و، نو ځکه به یې ډېر کم او یواځې کلنۍ رخصتۍ په تشکیل کې برخه أخیستلای شوه، خو وروسته یې د أخترونو او غیر مترقبه رخصـتیو څخـه پـه استفادې کرار جهادي فعالیت پراخ شو، له فراغت وروسته یې که څه هم د کور اقتصادي چـارو لمنه و نبوه خو همت یې کاوه او د طالبۍ تر وخت یې جهادي فعالیتونو تـه زیاتـه وده ور کـړې وه.

شهید وحدت تقبله اللـه د لـوګر ولایـت خـروار او څـرخ ولسـوالیو د ګڼـو سـیمو عملیـاتو، همدارنګه په ننګرهار کې د داعش پدیدې په وړاندې د لومړۍ کرښې شاهد پاتې شـوی او د یـو تکړه سرښندونکي مجاهد په صـفت یـې پـه زړه پـوري چـاري تـرسره کـړې، هغـه د سـپکو وسـلو ترڅنګ پـه درنـو وسـلو کـې هـم ډېـر ښـه بلـد و چـې پـه سـترو عملیـاتو کـې بـه یـې د هغـو لـه جملې۸۲ملي متري/ هشتاد دو د خپلي ځانګړې وسلې په توګه کارول، د خروار او څرخ ولسوالیو په فتحه کې د هغه بـارز رول، هیښـونکې میړانـه او د۸۲ملـي متـري پـه مـټ رسـا ګوزارونـه یـې ژوندۍ بېلګې دي.

مولوي وحدت تقبله الله د اسلامي امـارت پـه تشـکیلاتو کـې د (امـارت) د۱۴۳۶ او ۱۴۳۷ ســـپوږمیز کلونـــو د تعییناتو له مخې دوه کالـه د لوګرولایـت د خروار ولسوالۍ د معارف مسئول مدیر دنده درلوده، چې پکې یـې د مدارسـو او مکاتبو د نظم او ډسپلین ښه والي او پـر مختګ لپاره ډېرې هلې ځلې وکـړې، د مکاتبو زیاتر استادان یې نـوي و ګومارل او مخکیني یې لیرې کړل.

د۱۴۳۸سپوږمیز کال لپاره د یـادې ولسوالۍ د دعوت او ارشاد مـدیریت ور لـه غـاړې شـو، دا چـې هغـه د علمیـت ترڅنګ د زړه راښکونکي تعامـل او چلنـد خورا لوړه ملکه لرله په دې برخه کې یې هم ښې لاسته راوړنـې درلـودې، د کابـل اداري د پولیسو پـه ګـډون ګـڼ شـمیر د کابل رژیم له ملاتړ برخمنو ډلو غولېدلي افراد یـې جلب او د اسلامي امـارت لـه مجاهدینو سره یوځـای کـړل، دا چـې پـر وحدت جګـړه ایـز فکـر غالـب و د خپلـو دغو دندو په مهال یې هم وسله لـه اوږې نه وه ایښې، کله به یې هم چې فرصت و موند په عملیاتو کې یې برخه اخیستـه او نه ترې پاتې کېده.

د هغــه د لــوړ احســاس، همــت، متانـت ایثـار او فـداکارۍ سره سـم د ۱۴۳۹ســپوږمیز کــال لپــاره د اســلامی امارت نظامي قطعې د خـروار او څـرخ د کنـډک معاونیـت او د قطعـې د یـوې سرېې مشرۍ تـه بریـالی شـو، لـه خپلې سرېې سره له سیمي د ننګرهار پـه لـور د داعشیانو په وړاندې لومړۍ کرښې تـه و خوځېد او هلته یـې ترټـاکلې مـودې چـې شاوخوا څلوېښت شپې وه د یو غښتلي او تجربه کار مشر په صفت فعالیت وکړ.

**احــــرار د ادب پــــر اســــمان ځلیدونکی ستوری:** احرار تقبله الله تـه الله پاک ښه استعداد او وړتیـا ورکـړې وه، له طالبۍ یې لا د شعر او ادب له فن سره علاقه درلوده، د تدریس او بیا نظامي فعالیتونو پـه مرحله کې یې هم د شعر شاعرۍ میدان ګرم ساته او نوره یې هم ورسره دغه وړتیا وغوړېده، ډېر ښه شاعر په دې و چې شعر یې له حقیقته ډک، خورا اغېزمن او د هر شعر یې ښل راز او انداز و، دا چې هغه په یو وخت هم د سنګر، هم د د فتر او هم د ممبر سـړی و شـهیدان، استشـهادیان، غازیان او... یې د شعر په ژبه داسې انځورول چې له زړه به پورې ووري وته، که به یې پکې کـوم ډول وسله وستایله نو داسې به دې انګېرله چې همدا اوس پرې ددښمن پـه لـوري وارونـه کـوي، اوس هـم سـړي تـه هغـه صـحنه ور یـادوي چـې شـهید وحـدت تقبلـه اللـه بـه پـه سـنګر کـې ګانچه[یاڅادر]له سره تاو کړې، ملا به یې په څادر تړلې وه او پر دښمن به یې رسا بریدونه کول.

احرار تقبله الله چې په رښتیا احرار و شعر یې د (لِم تَقُوْلُونَ مَا لَا تَفْعَلُوْن) له جملې څخه نه و، د هغه د شعر ژبه له عمل سره سمه وه، نو ځکه یې شعر له اغېزه ډک اورېدونکې او لوستونکې ته یې د موضوع اړوند ځانګړی احساس ورکاوه، له همـدې امله د اسلامي امـارت څـو مشـهورو نعت خوانانو لکه: نوموتی او تکړه ترانه خوان الحاج مـلا فقیـر محمـد درویـش صـاحب ،مولـوي محمد طاهر بهار صاحب، مولوي عبدالحکیم سجاد صاحب، قاري محمد جمعه ساجد صاحب، او مولوي محمد یار جواد صاحب د احرار تقبله الله شعر د ترنم لپاره خـوښ او بیـا زمزمـه کـړی دی.

**شخصیت یې:** شهید مولوي سمیع الله احرار تقبله اللـه د نیکـو اخلاقـو او ښـو مواصـفاتو، لوړ احساس او جهادي فکـر څښـتن یـو رښـتونی، زړور، بهـادر، شـاهکار او فـداکار مجاهـد و، د خروار ولسوالۍ د فتحې په عملیاتو کې وحدت تقبله الله د ۸۲ملي متري/هشتاد دو په مـټ پـر پوستو داسې ګزارونه کول چې دښمن ترې سر نشوای پورته کولای، لـه هشـتاد دو سره د هغـه د مرمۍ او د شهید وحدت تقبله الله غښتلي مټ په شتون کې د دښمن قوې ولسوالۍ ته د راتلـو زړه نه درلود.

الله تعالی پر شهید وحدت تقبله الله د پیدایشي ښایست ترڅنګ ښایسـته خوبونـه، د زړه راښکونکی تعامل او چلند ملکه، د یو شاعر خوږه ـ د یو داعـي نرمـه ژبـه او د یـو رښـتونې دینـي عالم سپین زړه هم پېرزو کړې وه، د ایثار او فداکارۍ احساس، ټینګ هوډ، پـه هرڅـومره سـختو حالاتو کې نورمال اوسیدل او هیڅ شرائطـو تـه نـه تسلمېدل، د خپلمنځـي یـووالي د غښـتلتیا او انسجام، د جهاد د ودې او ولس د ښېرازۍ لپاره پرلپسې هڅې او...یې ځیني نور هغه صـفات و چې یو د لوړې سوېې بریالی مجاهد یې باید ولري.

شهید وحدت تقبله الله د (اِنَّمَایَخْشَی اللهُ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ) په مصـداقیت ډېرلـه خدایـه ویریدونکی، شفیق، متقی او پرهیز ګار انسان و او دایې د یو رښتوني عالم په توګه یوه ستره نښه هم وه، له همدې امله یې په وینا کې ځانګړی اثر او اغېز پروت و، د ممبر له سره یې پـر حقـه او له درده ډکه وینا د ټولو زړه تسخیراوه، د شهیدانو یاد ډېر ځوراوه او د یتیمانو حـال تـه بـه ډېـر زیات کرېده او پرې اوښکې به یې تویولې.

د شهید وحدت تقبله الله نږدې ملګری مولوي بهار صیب وایي: یـوه ورځ لـه هغـه سره د یوه شهید ملګري کورته ورغلم، په دروازه کې د هغه کوچنی یتـیم زوی ولاړ و، هغـه یـې پـه غیـږ کې واخست او ورسره سم په سلګو شو ښه ډېر یې وژړل او بیا یې وویل دا هلک ډېرنـازولی او پـه پلار یې ډېر ګران و، اوس یې پلار نشته او یتیم ده، پلار یې د خدای جلاجلاله له دینه ځار شـوی ما ته یې پلار را یاد شو، خو اوس احرار تقبله الله خپله شهید او ماشومان یې د هماغـه یتـیم پـه څېر یتیمان دي.

شهادت یې: لکه چې و مو ویل د۱۴۳۸سپوږمیز کال لپاره شهید وحدت تقبله الله د قطعې د یو کنډک د معاوین په صفت او ورسره د یوې سریې مشر۔ غوره شو او د هغې په مشرۍ جلال اباد ته لاړ، د داعشیانو په وړاندې د اسلامي امارت د لومړۍ کرښې برخوال شو او ترڅاکلې مودې یې فعالیت وکړ، له بیرته راستنېدو سره سم په خروار ولسوالۍ کې یوه شپه د بیگمې په کلي چاپه ولويده چې پکې د یرغلگرو څخه ډکه هلیکوپټر هم وويشتل شوه، امریکا یان په یاد کلي کې د ورځې هم پاتـه شول، شهید وحدت له جلال آباده د راتلو دمه لا نه وه جوړه کړې په سترې ساپې د تیر په شان اسلحه واخستله او د چاپې په راغلیو اشغالگرو او د هغوی پرلاسپوڅو د برید په تکل وخوځېد.

خو مخکې له دې چې د چاپې ځای ته ځان ورسوي او سنگر ونیسي۔ د دوو ملگرو قاري مطیع الله یوسف او طالب العلم گل الرحمن اسد تقبلهما الله په گډون د ماني بازار ته په رسېدو د ورځې نږدې ۱۱بجې ډرون په نښه کړل، دواړه ملگري یې شهیدان شوه خو وحدت تقبله الله لا ځخمي او پر سر یې لاسونه ایښي و چې یو دوه ملگري ورته راورسېدل، وحدت تقبله الله شهادت ته سترگې په لاره شهادتین ویل او هغو ملگروته یې وویل له دېځایه مو نقل کړئ، هغه ملگری وايي سمدستي یو څو مخلصو مجاهدینو هغه د تداوۍ لپاره خپل موټر ته پورته کړ او د غزني ددهیک ولسوالۍ په لور مو حرکت وکړ، که څه هم د دښمن چورلکي او جنگي الوتکي زیاتې وې د بیاځل بمبار خطر زیات و، خو موټروان جمعه گل استاذ (ښه مجاهد او تکړه سړی و چې بیا یو کال پس شهید شو) او ملگرو له دې هوډ

سره چې د سر په بیه به وحدت ډاکټرته رسوو د هیڅ خطرپروا ونگړه.

د وحدت تقبله الله له زخمونونه زیاته وینه روانه وه، په لاره یې د خپلو ملگرو قاري یوسف او اسد تقبلهما الله پوښتنه کوله او ویل به یې خدایه زمونږ وینه قبوله کړه! کله کله به یې اوبه هم وغوښتې، ملگرو به جوس ورکړ خو تنده یې پرې نه ماتیده، يوځل یې د خپلو دوو ملگرو له پوښتنې وروسته اوبه وغوښتې خو ملگرو نه ورکولې چې هسې نه بدې پرې ولگیږي، ملگرى وايي لیږ وروسته د دهیک ولسوالۍ ته نږدې مې ځان سره وویل که دا ځل یې اوبه وغوښتې ورکوم به یې خو چې ورته ومې کتل وحدت تقبله الله د شهادت په جام تنده ماته کړې وه.

**ملگری وايي:** ماسپښین ناوخت و له هغه ځایه بیرته را وگرځېدو، سبا ورځ د صفرالمظفر ۱۰مه په خروار ولسوالۍ کې د شهید احرار تقبله الله په گډون نږدې یولس جنازې وې، د شهید احرار تقبله الله او څلور نورو شهیدانو تقبلهم الله جنازې د هغه د پلرني کلي شیخانو په هدېره کې خاوروته وسپارل شوې.

هو! شهید احرار له کوره په داسې حال کې را بهرشو چې خپل د دوومیاشتو وړوکی زوی یې په زانگو کې پریښود، کشرۍ لور به یې هم په نیمکۍ ژبه ورته ویلي وي مولوي کاکا ! له کوره مه وزه تیاري ډیرې گرځې! همدارنگه مورکۍ به یې د پخوا په څېر دا ځل بیا د کور په دروازه کې تر ډېره او په تلوتلو کې له سترگوپناه کېدو ور پسې درېدلې وي، أحرار تقبله الله به هم خامخا دغه حالت ډېر ځورولی او پر زړه به یې درون دبوج وړی وي، خو په داسي حال کې چې پر ولسي وگړو او یا هم خپلو ملگرو دې چاپه وي د هغه غیرت، جرأت، مېراني او ایثار په کور کې کیناستل کله خوښول، همغه و چې په چاپه راغلي گډ دښمن د برید تصمیم یې ونېوه او د ۱۴۳۹/ هـ ق د صفرالمظفر ۹مه د ژوند وروستي ارمان شهادت لوړې رتبې ته ورسېد، انالله و انا اليه راجعون.

سباورځ:د صفرالمظفر په ۱۱مه د دې شهیدانو د فاتحې مراسم و، زیات خلق راغلي و، ډېره دردونکې ورځ وه د احرار تقبله الله شعر ویل کېده خو هغه ترې د شهادت په خوب ویده و، پر ستیج مولوي محمد یار جواد صیب د شهید احرار دا شعر و وایو:

**گوندې ما احرار له ځانه سره واخلي**

**شکر پير ندی لا ځوان دی شهادت**

رښتیا چې احرار یې اخستی وه سلگۍ وې اوښکې او ژړاوي وې، مولوي بهار صیب هم د احرار تقبله الله له زړې کتابچې څو له حقیقته ډک دردونکې شعرونه وویل ډېرې سترگې په اوښکو لمدې شوې، دا چې احرار تقبله الله هم دشا زلمیو په قافله کې تللی و او اوس نه تر سترگو کېده، نو دا مهال یې دا شعر زما زړه ته ودرېد:

**نن یې گورئ بیا به نه تر سترگو کیږي ــــ قافلي د شا زلمیو روانیږي**

**هاشمي احراره څه ورسره ولاړشه ــــ د یار کلي ته هم دا کاروان رسیږي**

رښتیا هم احرار ورسره تللی و، یو خوا د احرار تقبله الله په څېر خوږو ملگرو شهادتونه، بل خوا د احرار شعرونو او بل خوا د احرار تقبله الله پنځه کلن زوی او د شهید همت زوی (عمر) د ستیج یو او بل اړخ ته له سفین کلمه دار بیرغ په لاس او سپینه پټه په سر ترلې تازه یتیمان ناست و، دغه صحنه یې ډېره غمېزه جوړوله.

سید شریف

# تېر کال؛ د ګډو ځواکونو جنایتونو ته یو نظر

تېر( ۲۰۱۹) کال دمخکي څو کلونو په نسبت ډېر خونړی و، ملکي هیوادوالو ته د سر او مال زیات زیانونه واوښتل، په مختلفو بنو او بهانو دخلکو شکنجه او ځور روان و،د طالبانو تر واک لاندې سیمو کې دولسوالیو په کچه، لوی مېله ځایونه، بازارونه او نور عام المنفعه ځایونه په یومخیز ډول بمبار او ویجاړ کړل شول او ملکي خلکو ته پکې خورا درانه ځاني تلفات ورسیدل.

## د ډله ییزې وژنې څو بېلګې:

دمځ په ۵مه د فراه ولایت دبکوا ولسوالۍ داشکین ، پلوشي او سپین کاریز او د نیمروز ولایت ددلارام ولسوالۍ د شاګیو او دوراهي سیمو کې د یرغلګرو په بمبار کې اتیا( ۸۰) تنه ولسي هیوادوال د ښځو او ماشومانو په شمول شهیدان او ټپیان شول او خلکو ته خورا ډېر مالي زیانونه ورسیدل، یرغلګرو او کابل حکومت ددې برید په مهال ادعاء وکړه چې په سیمه کې یې دطالبانو دمخدره موادو ګڼې کارخانې له منځه وړې،خو څو میاشتې وروسته یوناما او حتی اشغالګرو هم ومنله چې په همدې عملیاتو کې یې ۴۰ تنه ولسي وګړي وژلي دي.

د جولای په ۱۴مه ګډو ځواکونو د دایکندي د ګیزاب ولسوالۍ په خلچ سیمه کې دښځو او ماشومانو په ګډون ۲۳ تنه ملکي هیوادوال شهیدان کړي دي.

د جولای په ۱۵مه امریکایي الوتکو د لوګر ولایت مرکز اړوند کمالخیلو سیمه کې هغه مسجد بمبار کړ چې خلک پکې د قرآن کریم تفسیر ته ناست وو، په دغه بمبار کې د کمال خیلو مسجد په یو مخیزه توګه ویجاړ شوی، څلور ویشت(۲۴) تنه ملکي هیوادوال شهیدان او لس تنه پکې ټپیان شوي دي.

د سپتمبر په ۵مه د ارزګان ولایت دچهارچینو ولسوالۍ په سیګزي او زمبوري سیمو کې د یرغلګرو او داخلي عسکرو شپږ ویشت تنه ملکي هیوادوال شهیدان کړي دي.

د سپتمبر په ۱۹مه د ننګرهار ولایت د خوګیاڼو ولسوالۍ د وزیرو د تور اوټ په سیمه کې یرغلګرو او حکومتي عسکرو د چلغوزیو په راټولونکو کاریګرو بمبار کړی، دننګرهار دولایتي شورئ غړي اجمل عمر په وینا په دغه بمبار کې څلویښت تنه ملکي هیوادوال شهیدان او دیرش نور ژوبل شوي دي

د سپتمبر په ۲۲مه ماښام مهال دهلمند ولایت د موسی کلا ولسوالۍ دکونجک او شواروز سیمو کې دیرغلګرو او حکومتي عسکرو په چاپه او بمبار کې درو نوي( ۹۳) تنه ولسي هیوادوال چې زیاتره یې ښځې او ماشومان دي شهیدان او ټپیان شوي دي،حکومت ویلي چې په دې عملیاتو کې یې طالبانو ته لوی زیان اړولی، خو د ولسي وګړو، قومي مشرانو او دهلمند دولایتي شورئ د غړو په وینا برید د واده په مراسمو شوی چې له امله یې ټول زیان ملکي وګړو ته رسیدلی دی، همداراز په دې عملیاتو کې دواده دمراسمو درې موټر او شپږ کورونه ویجاړ شوي دي.

## د جنګي جرمونو یو بیل کیفیت

تېر کال که دملکي تلفاتو د کمیت په لحاظ له نورو کلونو بېل و، نو دکیفیت له نظره هم له نورو کلونو متفاوت و،ځکه د۰۳،۰۲،۰۱ او ۰۴ ځواکونو چې د سي آی اې له ځانګړي ملاتړه برخمن دي، سلګونه ولسي وګړي په خورا وحشیانه ډول شهیدان کړل، دبېلګې په توګه دلوګر مرکز مربوط دادوخېلو سیمه کې همدې ځواکونو پر یو کور دچاپې په مهال له خلیج څخه راغلی د کلونو مسافر او د کورنۍ یو بل غړی یې دخپل کور په انګړ کې په ماین والوزول، د زرمت په کولالګو کې یې ۱۱تنه استادان ا و محصلین چې له کابله خپل کلي تللي وو، په مرمیو او برچو سوري سوري او شهیدان کړل، په هلمند کې یرغلګرو او حکومتي عسکرو یو ډاکټر شهید او دکورنۍ زنانه یې د بندیانو په توګه له ځان سره یووړې، چې دخلکو له څو ورځینو مظاهرو او منډو وروسته یې ښځې خوشې کړې،خو دوژل شوي ډاکتر او نورو ملکي وګړو د وژنې پوښتنه چا ونه کړه، چې ولې، د څه لپاره او دکومو شواهدو له مخې همدا کسان شهیدان شول!!

د ۲۰۱۹نومبر په لومړیو کې د بشري حقونو د څار نړیوال سازمان راپور کې په ډاګه کړه، چې دسي آی اې او کابل حکومت تر امر لاندې د۰۱،۰۲،۰۳،۰۴په نوم ځانګړي ځواکونه، کندهار یرغلیز ځواک او خوست کمپاین بشري حقونه تر پښو لاندې کړي او جنګي جنایتونه تکرار کړي دي.

د څار سازمان ویلي چې یادوو شوو ځواکونو زیاتره وخت ولسي اهداف او ملکي وګړي هدف ګرځولي.په راپو رکې داهم جوته شوې چې دغو ځواکونو اکثر عملیات د ناسمو معلوماتو، شخصي عقدو او کمزوري مدیریت پر بنسټ ترسره کړي، پر اسیرانو یې ډزې کړې او بې توپیره یې ولسي وګړي په نښه کړي دي.

تېر کال یرغلګرو او حکومتي ځواکونو په زرګونو ولسي وګړي شهیدان، ټپیان او اسیران کړل،ګڼ جوماتونه، مدرسې، ښوونځي، روغتونونه، بازارونه او کلي یې بمبار او ویجاړ کړل.

د یوې کره څېړنې له مخې تېر ۲۰۱۹ میلادي کال کې اشغالګرو او حکومتي قواوو په بیلابیلو عملیاتو او چاپو کې (۵۴۲۳) ملکي افغانان شهیدان او (۳۲۸۴) ټپیان کړي دي. (۱۰۲) جوماتونه، (۱۱) مدرسې، (۲۰) روغتونونه، (۱۸) ښوونځي، (۱۶۵۰)کورونه، (۱۷۱۹) دوکانونه، او (۸۸۱) عرادې دولسي وګړو موټر یې تخریب کړي دي.

ډېره دتاسف وړ ده، هغه غربیان چې خپلو هیوادونو کې یې وحشي ژوو ته ځومره حقونه ورکړي، دلته انسانانو ته دهماغه حیواناتو پر لس سلنه حقونو هم قایل نه دي، امریکایي او اروپایي یرغلګرو عسکرو او داخلي ملاتړو یې دریمه نړۍ په تېره افغانستان او عراق کې داسې جرمونه او وحشتونه تکرار کړل چې له ډېره وخته یې نړۍ کې بېلګې نه وې موندل شوې.

اشغالګر او کابل حکومت معمولا پر طالبانو تور لګوي چې تعلیمي او روغتیایي مرکزونه او ټولګټې ځایونه ورانوي،خو یوازې تېر کال چې ګډو ځواکونو څومره ښوونځي، مدرسې، کلینیکونه، عام المنفعه تأسیسات، دخلکو کارځایونه او شتمنۍ له منځه وړې په تېره لسیزه کې یې ساری نه لیدل کیږي.

